

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# مدني زده کړې

## دولسم ټولګی

۱۳۹۸

هـ.ش

# د کتاب ځانگړتیاوې

**مضمون:** مدني زده کړې
**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د مدني زده کړې د دیپارټمنت د درسي کتابونو مؤلفین
**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي
**ټولگی:** دولسم
**د متن ژبه:** پښتو
**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست
**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست
**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي
**د چاپ ځای:** کابل
**چاپخونه:**
**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیځلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# سرليکونه

# دولت

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

- دولت ته اړتیا،
- د دولت ډولونه،
- د دولت جوړښت،
- قانون،
- اساسي قانون،
- زموږ اساسي قانون.

# د ښېرکي موخې

د دې ښېرکي په لوستلو سره به په لاندې پوهنيزو او مهارتي موخو باندې برلاسي پيدا کړئ:

- د دولت پر مفهموم باندې به وپوهېږئ.
- د دولت د موجوديت اړتيا به درک کړئ.
- د دولت له دندو سره به بلدشئ.
- د افغانستان د دولت پرجوړښت باندې پوه شئ.
- د درې گونو قواوو له مفهوم سره به آشناشئ.
- اجرائيه قوا به وپېژنئ.
- مقننه قوا به وپېژنئ.
- قضائيه قوا وپېژني.
- د قانون په مفهوم باندې به پوه شي.
- د دولت مفهوم به توضيح کړای شئ.
- د دولت موجوديت ته به اړتيا تشخيص او بيان کړای شي.
- د دولت د ډولونو نومونه به واخيستی شئ.
- د دولت دندې به تشخيص او فهرست کړای شئ.
- د افغانستان د دولت جوړښت به توضيح کړای شئ.
- د دولت درې گونې قوې سره بېلې کړای شئ.
- د اجراييه قوې دندې به توضيح کړای شئ.
- د مشرانو او ولسي جرگو دندې به فهرست کړای شئ.
- قانون به تعريف کړای شئ.
- د قانون ډولونه فهرست کړای شئ.
- په اساسي قانون کې به خپلې دندې وښودلی شئ.
- د اساسي او عادي قوانينو ترمنځ به توپير وکړای شئ.
- د ټاکنو مفهوم به بيان کړای شئ.

# دولت ته اړتيا

تېر کال مو د ټولنيز نظم، ټولنيزو بدلونونو، ټولنيزې نابرابرۍ او ټولنيزو ستونزو په هکله معلومات تر لاسه کړل. څرنګه چې دولت له دغو ټولو سره نژدې اړيکې لري، لومړی درس په همدې عنوان پيل کوو.

## خبرې پرې وکړئ

- **دولت څه شی دی؟**

**ولې دولت ته اړتيا لرو؟**

که چېرې له خپلو دوستانو سره يو ځای د مېلې لپاره کوم ښکلي ځای ته د تفريح په خاطر ولاړ شئ، و به وينئ چې د دې پروګرام سرته رسول، د يولړ مقرراتو له رعايتولو پرته، ممکن نه دي، په دې معنا چې: د دوستانو موخې بايد څرګندې وي، هغو ته د رسېدو لارې مشخصې شي، ټول وګړي بايد په منظمه او يو له بله سره په همغږۍ توګه کار وکړي او له خپل سرۍ څخه ځان وژغوري. سربېره پر دې دغه کوچنی او ساده پروګرام به تاسې ته دا دروښيي چې يوازې مقررات او قوانين لازم نه دي، بلکې داسې يو څوک بايد ستاسې په ګروپ کې موجود وي چې د قوانينو د عملي کولو څارنه وکړي، د ګروپ د لارښوونې او امر کولو مسؤوليت پر غاړه واخلي؛ چې د مخالفتونو د راڅرګندېدو او ګډوډۍ مخه ونيول شي.

کله چې دغه کوچنی او ساده سيل(تفريح) له قوانينو او مقرراتو، مشرتابه او لارښود پرته بې نظمه وي، څرنګه کېدای شي چې ټولنه له دومره لوی والي او پېچلتيا سره له قانون او لارښود پرته نظم او پايښت ولري؟ له دې امله ويلی شو چې ټولنه دولت ته اړتيا لري، له دې امله ده چې انساني ټولنه ډېره له پخوا څخه دغه ډېرې مهمې اړتيا ته متوجه وه، د کوچنيو او لويو دولتونو په جوړېدو يې پيل کړی و. که چېرې په ټولنه کې دولت موجود نه وي، ټول کارونه ورانېږي، خلک به د دې وس ونه لري چې خپلې ورځنۍ اړتياوې پوره کړای شي. اوس چې په دې پوه شو چې ټولنه دولت ته اړتيا لري، نو دا هم ضروري ده ويوهېږو چې خپله دولت څه شی دی؟ په عمومي مفهوم سره دولت د اجرايي سازمانونو هغه مجموعه ده چې د ټولنې د اداري واک ورته ورکړل شوی وي.

د دولت کلمه دوه ډوله استعمال لري:

لومړی: د دریو عناصرو: (ځمکې، خلکو او حکومت) مجموعې ته دولت وايي چې په دغه استعمال کې د هېواد له کلمې سره مترادف دی او حکومت د هغه یو جز ګڼل کېږي.

دویم: دیوه هېواد د حاکمه ارګانونو او ادارو مجموعه (مقننه قوه او اجراییه قوه) ده چې دولت په دې استعمال کې د حکومت د کلمې سره مترادف دی. البته د دې کلمې مطلب په هر ځای کې د کلام له محتوا څخه ترلاسه کېدای شي.

## د دولت تشکیلوونکي عناصر په لاندې ډول دي:

### ۱- خلک یا ټولنه

د دولت په تشکیلوونکو بنسټیزو عنصرونو کې یو یې وګړي یا انساني ټولنه ده چې دولت تشکیلوي او پرته له هغه دولت بې معنا دی.

**۲- خاوره یا ځمکه**: د خاورې ساحه یا ځمکه د دولت یو بل عنصر دی. د یوه هېواد خاوره هغه جغرافيايي ټاکلې ساحه ده چې د هغې هېواد خلک په کې ژوند او حکومت کوي.

### ۳- حکومت

د سیاست په علم کې حکومت د هغه وسایلو (ابزار) په توګه ګڼل کېږي چې د دولت له خوا په ټولنه کې د نظم د ټينګښت، د کورني او بهرني امنیت د راوستلو، د خلکو د ژوند د ښه کېدو او خیرښېګڼې په خاطر منځ ته راځي.

**فرمانروايي**: د دولت لوړ ترین قدرت، قانون ایښودونکی او د قانون اجرا کوونکی دی. د قدرت د عملي کېدو په خاطر د حاکمیت حوزه تردې اندازې پورې ده چې د نورو دولتونو په حقوقو کې مداخله ونه کړي. نن ورځ دغه اصل منل شوی دی چې د دولت حاکمیت د خلکو له غوښتنو او ارادې څخه منځته راغلی دی، په دې دلیل سره سیاسي رژیمونه خپل ځانونه د خلکو استازي بولي.

**فعالیت**: خپلې ډلې سره د دولت د ډېر غوره او مهم عنصر په هکله چې دولت ته حقوقي او سیاسي ماهیت ورکوي، خبرې وکړئ او د خپل بحث پایله نورو ته واوروئ.

## که چېرې په یوه ټولنه کې حکومت نه وي، هغه ټولنه له کومو ستونزو سره مخامخ کېږي؟

څرنگه مو چې د دولت د تشکیلوونکو عناصرو په دریمه ماده کې ولوستل چې حکومت د دولت دننه په ټولنه کې د نظم د ټینگښت، د کورني اوبهرني امنیت د راوستو او د خلکو د ژوند د ښه کېدو او خیر ښېگڼې په خاطر رامنځ ته شوی دی، نو له دې امله په هره ټولنه کې باید ځینې ځانگړي ارگانونه موجود وي چې د ټولو مؤسسو کارونه وڅاري او لارښوونه ورته وکړي، ترڅو خپل کارونه په وخت سرته ورسوي او د خلکو ډول، ډول اړتیاوې په ښه توگه پوره کړي. په واقعیت کې حکومت په خلکو پورې اړه لري. خلکو ته لارښوونه کوي، اداره کوي یې او له کورنیو او بهرنیو ضررونو او زیانونو څخه یې ساتي. که چېرې په یوه ټولنه کې حکومت نه وي، په ټولو ټولنیزو، اقتصادي او سیاسي چارو کې یې گډوډي او بې نظمي رامنځ ته کېږي او ټولنه د گډوډۍ، مطلق العنانی، بې قانونی، بې فرهنگی، ظلم، خود سرۍ او ځان غوښتنې خوا ته ځي. د خلکو ځان، مال او ناموس په خطرکې لوېږي. انارشیزم (گډوډي) پر ټولنه باندې واکمنی پیدا کوي.

## د دولت د دندو په هکله څه پوهېږئ؟

که څه هم دولتونه په مختلفو ټولنو کې یو شان نه دي، خو بیا هم سره ورته دندې لري چې دلته یې له ځینو څخه یادونه کوو:

- د دولت د ادارې لپاره د قوانینو او مقرراتو وضع کول.
- د قوانینو د اجرا لپاره د مسؤولینو ټاکل.
- د قانون پراجرا باندې څارنه او له قانون ماتونې څخه مخنیوی.
- د دیني او ملي ارزښتونو ساتنه له مختلفو لارو څخه کېږي، لکه: ښوونځي، پوهنتونونه او ډله ییزې رسنۍ.
- د کورني امنیت ټینگښت.
- د اساسي قانون او نورو قوانینو تطبیق، له خپلواکۍ، ملي حاکمیت او له ځمکنۍ بشپړتیا څخه

دفاع کول.

لکه څرنګه چې مخکې مو وویل چې دولتونه څو ډوله دندې لري امکان لري چې ځینې دولتونه په ښه توګه هغه سرته ونه رسولی شي. ځینې دولتونه چې سالمه اداره او کلکه څارنه کوي او خپل ځان د خلکو په وړاندې مسؤول بولي، خپلې ورسپارل شوې دندې د ولس د یوه ښه خدمتګار په توګه سرته رسوي او خپل ځان له خلکو څخه جلا نه بولي.

**فعالیت**: د نوو دولتونو او پخوانیو دولتونو د دندو په هکله له خپل ګروپ سره مذاکره وکړئ او د خپلې مذاکرې پایله نورو ته واوروئ.

**د لوست تکرار**

- ........................................................................................................................
- ........................................................................................................................
- ........................................................................................................................
- ........................................................................................................................

**پوښتنې**

۱- د دولت د رامنځ ته کېدو اړتیا په څوکرښوکې ولیکئ.

۲- دولت تعریف کړئ.

۳- که چېرې په یوه ټولنه کې دولت نه وي، ټولنه له کومو ستونزو سره مخامخ کېږي؟

٤- د ځمکې یعنې خاورې د اهمیت په هکله خپل نظر څرګند کړئ.

۵- د دولتونو اصلي موخې او دندې کومې موضوعګانې تشکیلوي؟

**کورنۍ دنده**

د خپلو دوستانو په مرسته د دولتونو د دندو د زیاتېدو د لاملونو په هکله څوکرښې ولیکئ.

# د دولت ډولونه

مخکې مو زده کړل چې دولت د بشري ټولنې د افرادو له هغه ګروپ څخه عبارت دی چې په یوه ټاکلې ځمکه کې په منظم ډول سره ثابته او همېشنۍ استوګنه غوره کړې او له یوه خپلواک سیاسي قدرت څخه پیروي وکړي. په دې لوست کې د هغه له شکلونو سره آشنا کېږو.

## خبرې پرې وکړئ

د نړۍ خلک، د ژوند کولو لپاره مختلفې طریقې لري. امکان لري چې په ځینو برخو کې ګډه او مشترکه عقیده ولري او په ځینو مواردو کې توپیرسره ولري. له دې توپیرونو څخه یو یې دا دی چې د نړۍ خلک ډول ډول دولتونه چې په نړۍ کې موجود دي، تجربه کوي.

**کوم لاملونه د دولت د مختلفو شکلونو باعث شوي دي؟ په دې هکله په خپل ټولګي کې خبرې وکړئ.**

له تېرو زمانو څخه تر اوسه پورې دولتونه یو (واحد) شکل نه لري، د سازمان، د خپلواکۍ د درجې او د اداري د ډول له مخې یو شان نه دي. باید یوه شو چې دغه توپیرونه د تاریخي پېښو، جغرافیایي موقعیت، مذهبي او نژادي لاملونو، د پرمختګ د کچې ، اقتصادي ځرنګوالي او داسې نورو په سبب منځ ته راغلي دي، خو د دې توپیرونو سره سره دولتونه په درېو برخو وېشلی شو.

۱- د خپلواکۍ د درجې له مخې.

۲- د ترکیب له مخې.

۳- د حکومت د شکل له مخې.

### د دولت وېش د خپلواکۍ له نظره:

د خپلواکۍ له نظره دولت امکان لري چې خپلواک وي او یا د خپلواکۍ ماتوونکی( ناقض الاستقلال) وي.

**خپلواک دولت**: هغه دولت ته ویل کېږي چې په نړیوالو اړیکو او کورنیو چارو کې د کوم بل دولت تابع نه وي، ځرنګه چې وغواړي په کورنیو او بهرنیو چارو کې خپل قدرت او حاکمیت پلی کوي.

### ناقض الاستقلال دولت

دا یو کمزوری دولت دی چې د تړون له مخې او یا پرته له تړون څخه د یوه پیاوړي دولت تابع وي. که څه هم د پیاوړي دولت د حاکمیت حدود چې په کمزوري دولت کې یې عملي کوي، په هغه تړون کې چې د دواړو دولتونو ترمنځ لاسلیک کېږي ټاکل کېږي او یا هم پرته دکوم تړون له لاسلیک څخه، عملي کېږي، خو په اصل کې ناقض الاستقلال دولت د نړیوالو اړیکو د لرلو د حق څخه

په بشپړه توګه بې برخې وي. د بهرنۍ خپلواکۍ د نه لرلو سر بېره ناقض الاستقلال دولتونه د کورنۍ خپلواکۍ له مخې لکه: د وسله وال ځواک او سیاسي ګوند نه درلودل. د فلزي سکو او کاغذي پیسو د نشر محدودیت، د پور له محدودیتونو، معاملې او داسې نورو بندیزونو سره مخامخ وي.

## د ترکیب له مخې د دولتونو د وېش په اړه څومره پوهېږئ؟

د دولتونو د وېش په هکله دویمه طبقه بندي چې باید ویې منو، په بسیطو او مرکبو شکلونو باندې د دولتونو وېشل دي.

۱-**بسیط یا مرکزي دولت**: هغه دولت ته ویل کېږي چې د اجراآتو لپاره یوازې یو سیاسي مرکز ولري. بسیط دولت امکان لري چې له څو برخو څخه جوړ شوی وي، خو دغه برخې هیڅکله هم د کوم ځانګړي دولت یا واکمنې برخې په نوم نه یادېږي. له دې امله په بسیطو دولتونو کې د اوامرو، صلاحیتونو او د واکمنۍ عملي کول د مرکزي دولت دنده او مسؤولیت دی او د دولت نورې تشکیلوونکې برخې له مرکزي دولت څخه متابعت کوي. افغانستان، ایران او ترکیه د بسیط دولت مثالونه دي.

**فعالیت**: له خپلې ډلې سره له مشورې څخه وروسته د پنځو بسیطو دولتونو فهرست ترتیب کړئ.

۲-**مرکب دولتونه** Compositstates

مرکب دولتونه یعنې د یوه مرکزي قدرت پر محور باندې د څو حاکمو دولتونو یو ځای کېدل او هغه مورد نظر شخص یا بنسټ ته چې د غړو هېوادونو څخه لوړ مقام اشغالوي د خپل سیاسي قدرت او اختیاراتو د یوې برخې سپارل.

د مرکبو دولتونو ډېر مهم ډولونه کوم دي؟

د مرکبو دولتونو ډولونه عبارت دي له: کانفدراسیون او فدرال هېوادونو څخه چې په لنډه توګه معرفي کېږي.

۱- **کانفدراسیون**Confederation: هغه خپلواک هېوادونه دي چې د خپلې کورنۍ او بهرنۍ خپلواکۍ، سیاسي او حقوقي بنسټونو په ساتلو سره، د یوه تړون له مخې یو له بله سره متحد کېږي. د یووالي د تړون سره سم د خپلو حاکمو صلاحیتونو له جملې څخه ځینې صلاحیتونه یې یوه مشترک او مرکزي بنسټ ته ورسپاري. دغه مرکزي بنسټ د Diete په نامه سره یادېږي چې د یوه اجرائیوي بنسټ حیثیت لري چې د خپلو غړو هېوادو په استازیتوب او یا کله چې د دوی ګټې وغواړي، تصمیم نیسي. په داسې دولتونو کې مهمې موخې د سولې ټینګښت، د امنیت ټینګول او د غړو هېوادونو څخه

ګډه دفاع ده. د کانفدارسیون غړي هېوادونه معمولاً یو غیر ثابت او ناپایدار اتحاد شمېرل کېږي، ځکه چې د ړنګېدو خوا ته ځي او یا دا چې د یوه فدرال دولت بڼه ځانته غوره کوي، لکه: د سویس کانفدراسیون دولت چې له ړنګېدو څخه وروسته یې د یوه فدرال دولت بڼه ځانته غوره کړه.

## د فدرال دولت په هکله څومره پوهېږئ؟

د فدرال اصطلاح د لاتین د Feuds له کلمې څخه اخیستل شوې ده او د قرارداد یا موافقت نامې په معنا ده. د اساسي حقوقو په اصطلاح کې هغو مرکبو دولتونو ته ویل کېږي چې یو شمېر هېوادونه، ایالتونه او یا خود مختاره سیمې په کې شاملې وي او دغه دولتونه د یوه فدرال اساسي قانون په وسیله سره تړل شوي دي او یو واحد دولت جوړوي.

فدرالي دولت د سیاسي، اقتصادي او دفاعي موخو د لاسته راوړو په منظور منځ ته راغلی دی، ترڅو ځینې مهمې دندې، لکه: د بهرني سیاست چارې، د نظامي ځواک ساتل او تنظیمول، مالي مسایل او داسې نور د مرکزي دولت له خوا طرحه او کنټرول شي او نورې مسئلې دې غړو هېوادونو ته پرېښنودی شي.

**فعالیت**: په پورتنیو مثالونو برسېره د خپلو ټولګیوالو په مرسته د دریو فدرالي هېوادونو نومونه فهرست کړئ.

## د شکل له مخې د دولت په هکله څومره پوهېږئ؟

دولت د شکل له مخې په سلطنتي او جمهوري باندې وېشل کېږي

۱- **سلطنتي یا پاچاهي دولت**: هغه دولت ته ویل کېږي چې سلطان یا پاچا یې په سر(رأس) کې قرار ولري، واک یې زیات وي او اکثره پاچاهي په میراثي توګه یو بل ته نقل کېږي. سلطنتي دولت هم مختلف شکلونه لري چې له مطلقه او مشروطه سلطنت څخه عبارت دي.

**الف**: **مطلقه سلطنت**: هغه دی چې په راس کې یې پاچا قرار لري د پلار نه زوی ته انتقالېږي او میراثي بڼه لري. پاچا ټول واک او اختیار په لاس کې لري او د درې ګونو قوو ( اجرائیه، مقننه او قضائیه) په سر کې ځای لري په نړۍ کې پخواني سلطنتونه اکثره مطلقه وو.

**ب**: **مشروطه سلطنت**: دا ډول دولت د اساسي قانون او پارلمان لرونکی دی. په دې ډول دولت کې د مطلقه سلطنت پر خلاف د پاچا اختیارات د قانون له مخې محدودېږي او تصمیمونه د خلکو د استازو له خوا نیول کېږي. په دې سیستم کې پاچا په واقعیت کې یو سمبولیک حیثیت لري، عملي واکمني د صدراعظم په لاس کې وي.

**فعالیت**: د خپلې ډلې سره د مطلقه او مشروطه سلطنت ترمنځ د توپیرونو په هکله د مشورې نه وروسته د خپلې ډلې نظریه نورو ته واوروئ.

۲- **جمهوري دولت**: هغه دولتونه چې واکمنان یې په میراثي توګه نه، بلکې د خلکو له خوا ټاکل کېږي، جمهوري دولتونه ګڼل کېږي او جمهوري دولتونه هم په دوه ډوله وي: ریاستي او صدارتي.

**الف**: **ریاستي جمهوریت**: هغه دولت ته وایي چې د اجراآتو صلاحیت له جمهور رییس سره وي کوم چې د درې ګونو قواوو ( اجرائیه، مقننه او قضائیه) په سر کې موقعیت لري. لکه د افغانستان جموري دولت.

**ب**:**صدارتي جمهوریت**: هغه دولت ته ویل کېږي چې د چارو واک په کې له صدراعظم سره وي، د جمهور رییس واکونه په کې لږ وي او یو سمبولیک حیثیت لري، لکه د پاکستان جمهوري دولت.

**فعالیت**: د خپلو ملګرو په مرسته لسو جمهوري هېوادونو نومونه فهرست کړئ او په ټولګي کې یې نوروته واوروئ.



**د لوست تکرار**

• ..............................................................................................................

• ..............................................................................................................

• ..............................................................................................................



**پوښتنې**

۱- د دولت د شکل اختلاف بیان کړئ.

۲- مرکب دولت تعریف کړئ.

۳- د مرکبو دولتونو یوازې نومونه واخلئ.

٤- فدرال دولت تعریف کړئ.

٥- له لاندې جملو څخه یوه یې د جمهور رییس د ټاکنو په هکله سمه ده هغه د ($\sqrt{}$) په علامه په نښه کړئ.

الف: د جمهور رییس ټاکنه د خلکو رایوته د مستقیمې مراجعې له لارې تر سره کېږي.

ب: د جمهور رییس ټاکنه د خلکو رایو ته د غیر مستقیمې مراجعې له لارې ترسره کېږي.

ج: د جمهور رییس ټاکنه د خلکو د رایو د اخیستلو له لارې صورت مومي.

د: د جمهور رییس ټاکل دخلکو رایو ته د مستقیمې او یا غیر مستقیمې مراجعې له لارې تر سره کېږي.



**کورنۍ دنده**

مطلقه سلطنتي دولت له مشروطه شاهي دولت سره پرتله کړئ.

# زموږ د دولت جوړښت

د مخه مو د دولت له شکلونو سره  آشنايي پیدا کړه. په دې لوست کې به د افغانستان د دولت له جوړښت سره بلدتیا پیدا کړئ.

## خبرې پرې وکړئ

د افغانستان دولت له حقوقي نظره ریاستي نظام لري او د جوړښت له نظره د اجرائیه قوې (حکومت) مقننه قوې ( ملي شورا) او قضائیه قوې څخه تشکیل شوی دی. د ټولو په سر کې جمهور رییس چې د پنځوکلونو لپاره ټاکل کېږي، د نظام د لارښوونې ( رهبرۍ) په سر کې ځای لري او په ټولو سیاسي او اداري بنسټونو باندې د ناظر او اداره کوونکي حیثیت لري. دجمهور رییس ځینې صلاحیتونه او دندې په لاندې ډول دي:

د ملي شورا په تصویب،د هېواد د سیاست اساسي کرښو ټاکل، د هېواد د وسله والو ځواکونو سرمشري؛ د ملي شورا په تصویب سره د جګړې اعلانول او ډزبندي، د وزیرانو ، لوی څارنوال ، د مرکزي بانک، سرې میاشتې او ملي امنیت د رییسانو ټاکل او د هغوی د لرې کولو او استعفا منل، په هېواد کې د بهرنیو هېوادونو د سیاسي استازو د اعتماد نامې منل، د قانون له حکمونو سره سم د مجازاتو بخښنل او کمول.

**فعالیت**: په پورتنیو صلاحیتونو سربېره جمهور رییس نورې کومې دندې او صلاحیتونه لري؟ د یوې ډلې استازي دې موضوع زده کوونکو ته بیان کړي.

**د اجرائیه قوې ( حکومت) سره آشنا شئ**: ولس مشر د حکومت ریاست پرغاړه لري او وزیران د هغې سیاسي او اداري همکاران ګڼل کېږي د اجرائیه او مجریه قوې په نامه هم یادېږي او هغه قوا ده چې د مقننه قوې د قوانینو او پرېکړو، د دولت د چارو د اداري او د بهرني او کورني سیاست د سرته رسولو او اجرا کولو مسؤولیت ور په غاړه دی. حکومت ډېره مهمه، فعاله او کاري قوا ده؛ په دې ترتیب  سره د یوه دولت پرمختګ مخکې تردې چې په کومه بله خوا پورې اړه پیدا کړي، په دې قوا پورې اړه لري،  ځکه چې د پراختیا او پرمختګ د طرحو ټول پلانونه د پیل څخه تر ختمه پورې په دې قوا پورې اړه لري، د پارلمان له خوا ډېر ښه تصویب شوی قانون او د قضایي محکمې ډېره عادلانه پرېکړه که چېرې د دې قوې له خوا عملي نه شي، هېڅ اثر او ګټه به ونه لري.

## آیا پوهېږئ چې حکومت کومې دندې لري؟

د حکومت له مهمو دندو څخه ځینې یې دا دي.

- د اساسي قانون او نورو قوانینو د حکمونو او د محکمو د قطعي پرېکړو عملي کول.
- د خپلواکۍ ساتنه، د ځمکنۍ بشپړتیا څخه د فاع او په نړیواله ټولنه کې د افغانستان د ګټو او حیثیت ساتل.

• د ټولنیز امن او نظم تأمینول او د هر ډول اداري فساد له منځه وړل.
• د بودیجې ترتیبول، د دولت د مالي وضعې تنظیمول او د عامه شتمنۍ ساتل.
• د پرمختیایي، صحي، فرهنګي، تعلیمي، اقتصادي او تکنالوژیکي پروګرامونو طرح او تطبیق.

**فعالیت**: د حکومت ځینې دندې د خپلې ډلې په مرسته بیان کړئ.

## ملي شورا

### خبرې پرې وکړئ

مخکې له دې مو وویل چې زموږ دولت د دریو قوو یعنې اجرائیه قوا ( حکومت) مقننه قوا (پارلمان) او قضائیه قوو څخه تشکیل شوی دی چې هره یوه یې ځانته مشخصې دندې لري.

### آیا پوهېږئ چې ملي شورا څه شی ده؟

هغه ډله خلک چې په هر هېواد کې د قوانینو د وضع کېدو، تصویب او د هغو پر اجرا باندې د نظارت په خاطر د خلکو له خوا د مستقیمو، پټو او عمومي رأیو د اچونې له لارې ټاکل کېږي، ملي شورا ورته وېل کېږي. هغه هېوادونه چې د درې ګونو قوو د تفکیک یعنې جلا والي له اصل نه پیروي کوي، پارلمان تشکیلوي چې زموږ په هېواد کې د ملي شورا، په ایران کې مجلس او د امریکا په متحده ایالتونو کې د کانګرس په نومونو سره یادېږي. ملي شورا یا د افغانستان قانون جوړوونکی مجلس د هېواد یو خورا مهم ملي او سیاسي بنسټ دی چې ډېره موده پس د ۱۳۸۳ لمریز کال په اوړي کې یې یو ځلې بیا د ملي حاکمیت او د افغانستان د خلکو د ارادې څرګندوونکي تر عنوان لاندې خپل سیاسي ژوند پیل او د هېواد د قانون ګذارۍ پرګدۍ باندې یې ډېره ولګوله. ملي شورا له دوو مجلسونو یعنې ولسي جرګې او مشرانو جرګې څخه جوړه شوې ده. د ولسي جرګې او مشرانو جرګې استازي د دې لپاره چې د مملکت په مسایلو کې ښه تصمیمونه ونیسي او ښې پرېکړې وکړي، هر مجلس له خپل منځ څخه یو کس د رییس په توګه د یوې تقنیني دورې لپاره، دوه کسه د لومړي او دویم نایب په توګه، دوه کسه هم د منشي او د منشي د نایب په توګه د یوه کال لپاره ټاکي.

د ملي شورا ځینې صلاحیتونه دا دي:

- د قوانینواو یا تقنیني فرمانونو تصویب، تعدیل او یا لغوه کول. [۱]
- د ټولنیزو پرمختیایي، فرهنګي، اقتصادي او تکنالوژیکي پروګرامونو تصویبول.
- د دولتي بودیجې تصویب او د پور اخیستنې او یا بخښنې د اجازې اخېستل.
- د اداري واحدونو تشکیلول یا د هغو تعدیل او لغوه کول.
- د نړیوالو تړونونو تصدیقول او یا له هغو سره د افغانستان د یوځای کېدو فسخ کول.

**د ملي شورا اساسي دندې**: د ملي شورا اساسي دندې په دریو برخو وېشلی شو، لکه: قانون جوړول، د مجریه قوې له کړو وړو څخه نظارت او د خلکو استازیتوب.

(۱) قانون د ملي شورا د دواړو مجلسونو له هغې مصوبې څخه عبارت دی چې د جمهور رئیس له خوا توشیح شوی وي. تقنیني فرامین له کلي او لازمي قواعدو څخه عبارت دي چې د ولسي جرګې د رخصتی په وخت کې د حکومت له خوا وړاندیز شوي او جمهور رئیس توشیح کړي وي.

**۱- قانون جوړول**: مقننه قوا د قانون جوړولو بنسټ دی. قوانین د زیات شمېر خلکو په ژوندانه باندې اغېز کوي، د ملي شورا غړي د خلکو د استازو په توګه د اساسي قانون له حکمونو سره سم د قوانینو د پیشنهادي طرحو د تصویب، رد او یا لغوه کېدو او د خلکو د غوښتنو او اړتیاوو په پام کې نیولو سره، د استازو د قانوني طرحې د وړاندې کولو صلاحیتونه لري.
**۲- د اجرائیه قوې د چارو څارنه**: د اجراییه قوې د کړو وړو نه څارنه کول، د هر ولسي تقنیني بنسټ د دندو بنسټیز زړی (هسته) جوړوي. څارنه یا نظارت اصلاً د هغو ځانګړو طریقو او مشرحو حکمونو څخه په ګټه اخیستنې سره چې په اساسي قانون او د جرګې د داخلي دندو په اصولو کې ځای کړای شوي دي لکه: استماع، استجواب، استیضاح، عمومي غونډې، مالي څارنه ( نظارت) د موضوعګانو د څېړنو په خاطر د ځانګړي کمیسیون جوړول، د ټولیزو حسابونو څېړنه، تقنیني نظارت، د مقرریو منل یا ردول، تر سره کېږي.
**د خلکو استازیتوب**: د ملي شورا غړي د افغانستان د خلکو د استازو په توګه دنده لري چې د خپلو موکلینو د غوښتنو او اړتیاوو څخه په ټولو مجلسونو او غونډو کې استازیتوب وکړي. د دوی شکایتونو ته پاملرنه وکړي او د هغو په لرې کولو او تأمینولو کې هڅه او هاند وکړي. لکه څرنګه چې د مخه ولوستل شول، ملي شورا له دوو جرګو څخه جوړه شوې ده چې له مشرانو جرګې او ولسي جرګې څخه عبارت دي

**مشرانو جرګه**: د غه جرګه ۱۰۲ غړي لري چې په لاندې ډول ټاکل کېږي.

- د هرې ولایتي شورا څخه یو کس د نوموړې شورا په ټاکنه د څلورو کلونو لپاره.
- د هر ولایت د ولسوالیو د شوراګانو له غړو څخه یو تن د نوموړو شوراګانو په ټاکنه د درېو کلونو لپاره.
- پاتې دریمه برخه یې د پوهو او تجربه لرونکو اشخاصو څخه چې په هغو کې دوه کسه د معلولینو او دوه کسه د کوچیانو استازي د جمهور رییس له خوا د پنځو کلونو لپاره ټاکل کېږي. جمهور رییس د دغو اشخاصو له جملې څخه پنځوس سلنه ( فیصده) له ښځو څخه ټاکي.

## ولسي جرګه

د ولسي جرګې غړي د هېواد له ۳٤ ولایتونو څخه د خلکو له خوا د مستقیمو، آزادو، پټو او عمومي رایو اچونې په نتیجه کې ټاکل کېږي. ولسي جرګه ۲٤۹ غړي لري چې ٦۸ څوکۍ یې ښځوته ځانګړې شوې دي.

**د ولسي جرګې ځانګړي صلاحیتونه**: د هر یوه وزیر د استیضاح په هکله تصمیم نیول، د پرمختیایي پروګرامونو او دولتي بودجې په هکله تصمیم نیولو، د مقرریو تاییدولو او یا ردولو څخه عبارت دي.

**فعالیت**: هره ډله دې له ځینو غړو سره د استیضاح په هکله بحث وکړي او د دوی استازي دې پایله نورو ته ووایي.

په پایله کې ویلای شو چې د ملي شورا اهمیت په دې کې دی چې زموږ د ملت د ارادې بیانوونکې او د قانون جوړولو د صلاحیت دندې لري، د خلکو استازیتوب او د اجرائیه قوې د کړو وړو او فعالیتونو څارنه کوي. د حکومت د قدرت د محدودولو لپاره ډېره مهمه وسیله ده. د ملي شورا له خوا په وخت او موقع سره د صلاحیتونو عملي کول او د طرحه شوو وسایلو او دندو په ښه او باکیفیته توګه اجرا کول په سیاسي ټولنیزو او فرهنګي چارو باندې د خلکو رښتینی حاکمیت ټینګوي.

## قضائیه قوه

په ټولنه کې ځینې داسې خلک شته چې د هغې ټولنې د خلکو په حقونو باندې تېری کوي.

**فعالیت**: ستاسې په نظر، که چېرې په ټولنه کې څوک د چا په حقونو باندې تېری وکړي، څه حالت را منځ ته کېږي؟

د دغه حقونو بېرته تر لاسه کول د کوم ارګان له خوا عملي کېږي؟

هر دولت چې غواړي هېواد اداره کړي او د ټولنې خلک نېکمرغه او ټولنیزې خیر ښېګڼې ته ورسوي، که چېرې دغه دولت د عدالت د ټینګښت او له قانون ماتونې سره د مبارزې کولو لپاره یو پیاوړی ځواک ونه لري، نو نه یوازې دا چې نیمګړی به وي، بلکې پایښت به هم و نه کړي. د عدالت د اجرا کولو مسؤولیت او له قانون ماتونې سره مبارزه په هر دولت کې د قضائیه قوې په غاړه ده. د دې قوې شته والی د قوانینو د اجرا ضامن دی. قضائیه قوا د دولت دریم رکن دی چې د دوو کسانو ترمنځ د شخړې د مسایلو په هکله په ټولنه کې د عدالت د ټینګښت په خاطر د قوانینو د تفسیر او تطبیق دنده په غاړه لري. یعنې کله چې په ټولنه کې د هېوادوالو پر حقونو باندې تېری کېږي، د دغو حقوقو بیا ترلاسه کول د قوانینو د تطبیق په وسیله د قضائیه قوې له خوا تر سره کېږي. په داسې حالتونو کې د قانون د تطبیق څخه موخه په ښه ډول سره د حق تثبیتول او د عدالت تأمینول دي. په بله ژبه قضائیه قوا او محکمې د ټولنې په یوه ځانګړي سیستم کې د عدالت ساتندویان او د حق او باطل تر منځ د تشخیص وسیله بلل کېږي. په قضائیه قوا او د قوانینو په عادلانه تطبیق کولو باندې په ډېره لګولو سره ده چې د یوه دولت اتباع خپل حقوق د قوانینو او مقرراتو د تطبیق له مخې چې د ټولنې د نظم ساتلو لپاره جوړ شوي دي، ډاډمن واوسي او په سیاسي او ولسواکي سیستم باندې خاص اعتماد کوي. که چېرې په ټولنه کې عدل او انصاف او امنیت حاکم نه وي هېڅ ټولنیز، اقتصادي، فرهنګي او سیاسي پروګرام به په ټولنه کې بریالی نه شي.

**فعالیت**: د خپلې ډلې سره په مشوره باندې د قضائیه قوې دندې خلاصه کړئ او بیا یې د خپل استازي په واسطه نورو ته بیان کړئ.

## د هېواد له قضائيه قوې سره آشنا شئ

قضائيه قوا د افغانستان د اسلامي جمهوريت يو خپلواک رکن دی چې له سترې محکمې، د استيناف محکمو او ابتدايي محکمو څخه تشکيل شوې ده. ستره محکمه د افغانستان د قضائيه قوې په سر کې د قضائيه قوې د عالي ترين ارگان په توگه ځای لري او هڅه کوي چې عدالت په ټولنه کې پلی کړي او هېڅوک ونکړای شي چې د نورو حقوق تر پښو لاندې کړي. ستره محکمه له نهو غړو څخه ترکيب شوې ده چې د جمهور رييس له خوا د ولسي جرگې له تصويب وروسته ټاکل کېږي. جمهور رييس د نهو غړو له جملې څخه يو يې د سترې محکمې د رييس په توگه مقرروي.

که چېرې په کوم هېواد کې قضائيه قوا موجوده نه وي ، خلك يې له کومو ستونزو سره مخامخ کېږي؟




### ستره محکمه له لاندېنيو ديوانونو څخه تشکيل شوې ده؟

١- د عمومي جزا ديوان.

٢- د عامه امنيت ديوان.

٣-د مدني او عامه حقوقو ديوان

٤- سوداگريز يا تجارتي ديوان.

### آيا پوهېږئ چې ستره محکمه کوم صلاحيتونه او دندې لري؟

ستره محکمه د قوانينو د تفسير او قضايي چارو په برخه کې صلاحيتونه او دندې لري چې ځينې يې عبارت دي له:

١- د قانون مطابق د حکومت يا محکمو د غوښتنې پر اساس، له اساسي قانون سره د قوانينو، تقنيني فرمانونو، نړيوالو تړونونو او نړيوالو ميثاقونو د مطابقت څېړل او د هغو تفسيرول.

٢- د حکومت له لارې ملي شورا ته د قضائي چارو د تنظيم په ساحه کې د قانون د طرحې وړانديز.

٣- د قضايي روېې[1] د يووالي تأمينول.

په پورتنيو موضوعگانو سربېره نور کوم مطالب د سترې محکمې په دندو او صلاحيتونو کې شاملېږي؟

**د قضائيه قوې اهميت**: د جگړې او کينې له منځه وړلو لپاره قضاوت او انصاف کول، د ضرورت په صورت کې د خلکو د مالونو او آن چې د هغوی د ځانونو د تصرف حق لري. له دې

(١) قضاييه روېه: د هغو رايو مجموعه چې د هېواد د سترې محکمې د عمومي هيئت له خوا صادره شي او د محکمو لپاره په ځينو موادرو کې د عمل کولو معيار وي.

امله ده چې قضاوت د اسلام په سپیڅلي دین کې ستر اهمیت لري.

په دې اساس قضائیه قوا خطرناک رسالت او درندې دندې لري. له داسې ټولنیزو او فردي حقوقو ملاتړ، پر افرادو او عامه حقوقو باندې د تیري او د هغوی د لاملونو پېژندل، د مجرمانو او تیري کوونکو محاکمه او سزا ورکول د دې ارګان د دوامداره هڅو شخه دي. له دې امله ویلی شو چې قضائیه قوا د ټولنې د اداري په چارو او د حکومت د سیاسي اقتدار د تثبیت د ستنو او د نظم او امنیت په ټینګښت کې بې مثله او ټاکونکی ځای لري. له دې کبله باید دولت د قاضیانو امنیت او معاش ته پاملرنه وکړي؛ د هغوی مادي او معنوي ستونزې ورحل کړي، څکه چې غریبي سړي ته د بې لارې کېدو شرایط برابروي او د قاضیانو د عدالت کولو په مخ کې خنډ ګرځي. په داسې صورت کې چې دغه قوا له سالمو او روغو اشخاصو څخه نه وي جوړه شوي او یا دا چې د هغې چارې ناپاکو او غیر مسلکي اشخاصو ته وسپارل شي، په ټولنه کې ظلم او فساد رواج مومي او د خلکو حقه حقوق تر پښـولاندې کېږي چې په پایله کې د دولت د کمزورتیا خوا ته ځي.

**فعالیت**:د هېواد د قضاییه قوې په اړه کې خپل نظر څرګند کړئ.



## د لوست تکرار

- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................



## پوښتنې

۱- قضائیه قوا څه شی ده؟

۲- ستره محکمه له څو غړو څخه جوړه شوې ده؟

۳- د سترې محکمې دیوانونه کوم دي؟

٤- د قضائیه قوې له صلاحیتونو څخه د پنځو موادو نومونه واخلئ.

٥- که چېرې په ټولنه کې امنیت حاکم نه وي، ټولنه له کوموستونزو سره مخامخ کېږي؟



## کورنۍ دنده

د قضائیه قوې د اهمیت او ضرورت په هکله څو کرښې ولیکئ.

# قانون

له دې مخکې مو وویل چې ټولنه دولت ته اړتیا لري. د افغانستان اسلامي جمهوري دولت د دریو (اجرائیه، مقننه او قضائیه) قوو څخه جوړ شوی دی. په اوسني لوست کې له قانون سره چې د دولتي مؤسسو ترمنځ د اړیکو تنظیموونکی دی، آشنا کېږئ.



## خبرې پرې وکړئ

دولت د مؤسسو او ارګانونو ترمنځ لازمه همغږي رامنځ ته کوي او د ملت د خلکو حقونه تأمینوي. دغه همغږي او د حقونو تأمینول د دې لامل کېږي چې دولتي ارګانونه او مؤسسې خپلې دندې په ښه توګه سرته ورسوي او خلک خوندي او هوسا ژوند وکړي. په دې برخه کې پوښتنه کېږي چې دولت دغه همغږي او د حقونو تأمینول د څه شي په وسیله سره سرته رسوي؟ په دې هکله په ټولګي کې له خپلو ټولګیوالو سره خبرې وکړئ.

ستاسې په ښوونځي کې ځینې خلک شته چې هر یو یې ځانګړې دنده سرته رسوي، د بېلګې په توګه: ښوونکي د ځانګړو مقرراتو له مخې درس ورکوي. د لیسې مدیر، مرستیالان او ښوونکي د خپلو دندو له لایحو سره سمې خپلې چارې سرته رسوي. که چېرې د مدیر، مرستیالانو او سر ښـوونکو څخه پوښتنه وکړئ، ټول به ځواب درکړي چې موږ د هغو قوانینو، مقرراتو او لایحو سره سم چې د ښوونې او روزنې وزارت له خوا رالېږل شوي دي، دغه همغږي منځته راوړو.

دولت د دولتي ارګانونو او مؤسسو د مختلفو کارونو د همغږ کولو لپاره قوانین جوړ کړي دي او د دغو قوانینو په وسیلې سره د دولت او خلکو ترمنځ اړیکې او همدارنګه په خپله د خلکو ترمنځ اړیکې تنظیموي. دلته پوښتنه کېږي چې قانون څه شی دی؟ قانون یو له ډېرو تاریخي او پېژندل

شوو مفاهیمو څخه دی چې په هر ځای کې ترې کار اخیستل کېږي. خلك او د ټولنې مختلفې ډلې د دوی له ټولنیز موقف سره سم د خپلو ارزښتونو، عقیدو او نظریو د ساتلو لپاره له دغه مفهوم څخه کار اخلي. تاسې په خپل ورځني ژوندانه کې د دې لپاره چې څه باید وکړئ او څه ونه کړئ، د دیني، اخلاقي او ټولنیزو دودونو او لارښوونو پر بنسټ چې د قواعدو په نوم یادېږي، عمل کوئ. ځینې قواعد اسلامي لارښوونې دي، لکه دا چې رشوت حرام دی، نو مسلمان سړی باید چې رشوت وانخلي. یا دا چې پر هر مسلمان که نر وي او که ښځه د علم طلب فرض دی، باید چې ټول مسلمانان علم زده کړي؛ اسلامي ټولنه باید د پاکوالي رعایت وکړي. ځینې قواعد ورو، ورو د انسانانو په ټولنیز ژوند کې رامنځ ته شوي او تثبیت شوي دي، د بېلګې په توګه: د جامو اغوستلو، ډوډۍ خوړلو، روغبړ کولو او دخبرو کولو ډولونه. د دې قواعدو بل ډول د دولت له خوا را منځ ته کېږي چې د مقننه قوې او نورو لارو څخه ټاکل کېږي چې د هغې د اجرا او رعایتولو لارښوونې د ټولنې خلکو او دولتي ارګانونو ته ابلاغیږي، قانون ورته وايي. قانون یوناني کلمه ده چې د Canon له لغت څخه اخیستل شوې ده او د قاعدې په معنا له یوناني ژبې څخه عربي ژبې ته ورګډه شوې او عربي شوې ده. وروسته بیا له عربي څخه د پښتو او دري ژبو ته راغلې ده، جمع یې قوانین ده. **قانون د حقوقي قاعدې له هغې ټولګې څخه عبارت دی چې د هېواد د صلاحیت لرونکي ارګان له خوا وضع او په دوامداره توګه په ټولو باندې د تطبیق وړ وي**. زموږ د هېواد اساسي قانون، قانون دا رنګه تعریف کړی دی: **قانون هغه مصوبه ده چې د ملي شورا د دواړو جرګو له خوا تصویب او د جمهور رییس له خوا توشیح شوې وي**. له دې امله ویلی شو چې قانون هغه لازمي او صریح اوامر دي چې پر لیکلي ډول د صلاحیت لرونکو مقاماتو له خوا وضع او تدوین شوي وي او منظور ترې د ټولنې د راتلونکي ژوند لارښوونه وي؛ هغه قوانین چې زموږ په هېواد کې نافذ دي، ځینې یې عبارت دي له: مدني قانون، سوداګریز قانون، د قاچاقو د مخنیوي قانون، د ترافیکو قانون، د نشه یي توکو په خلاف د مبارزې قانون، د مدني محکمو د اصولو قانون، د سوداګریزو محکمو د اصولو قانون، دګمرکونو قانون، د ناریه وسلې قانون، د جزا قانون، د تروریستي جرمونو پر خلاف د مبارزې قانون، نظامي قانون او......

## د قانون موخه څه شی ده؟

د قانون موخه د ربښتیني نېکمرغۍ تأمینولو، د نظم د ټینګښت په وسیله د خلکو د هوساینې ضمانت، د ګډوډۍ له خطر څخه د ټولنې ساتل او هوسایي، د خلکو د حقوقو خوندیتوب او د ظلم مخنیوی، د آزادیو د حدودو ساتنه، د خلکو، طبقاتو او دولتونو په خپل سر له مداخلو څخه مخنیوی او د ټولینز نظم ساتل دي.

### فکر وکړئ او ځوب ورکړئ

داسې فکر وکړئ چې په ټولنه کې هېڅ قانون حاکمیت نه لري. په داسې حالت کې ممکن له ډېرو ناوړو پېښو سره مخامخ شئ، د بېلګې په توګه:

- د شپې په اوه بجې غله ستاسې د ګاونډي کور لوټوي او څو کسه یې هم ژوبلوي.
- د ډوډۍ اخیستلو په وخت کې د نانوایي مخې ته په لیکه ولاړ یې، بل سړی بې له دې چې په لیکه کې ودرېږي، بې نوبتي کوي. کله چې هغه ته وایي چې په نوبت کې ودرېږي، تاسې ته بې ځایه غوسه کوي او وهي مو، آیا کولای شئ په هغه ټولنه کې چې قانون موجود نه وي، ژوند وکړئ؟ آیا له خپلې راتلونکې څخه ډاډمن یاست؟

د قانون په نشتوالي او یا له هغه څخه د نظارت په نه کولو سره، ټولنه له زیاتو ستونزو سره مخامخ کېږي. ټولنه له نظم، همغږۍ او امنیت څخه محرومیږي. له دې امله ویلی شو چې ټولنه قانون ته اړتیا لري. هره ټولنه چې وغواړي ټینګه او دوامداره وي، باید قوانین ولري، چې د هغې ټول خلک خپل ځانونه له هغو قوانینو څخه په پیروي کولو ملزم وګڼي او هم باید داسې څوک موجود وي چې د قوانینو د وضع کولو او اجرا کولو مسؤولیت په غاړه واخلي. دغه پورته یاد شوي مطالب د دولت له دندو څخه شمېرل کېږي. د تاریخ په اوږدو کې داسې ټولنه نه ده لیدل شوې چې هغه دې قانون ونه لري، له دې امله ده چې خلکو له پیله په ټولنه کې د ځان د کړو وړو لپاره قوانین او مقررات وضع کړي دي او له هغه سره سم یې عمل کړی دی، نو د ټولنې ټولو خلکو ته لازمه ده چې په قوانینو وپوهېږي، پر هغو باندې عمل وکړي او له قانون څخه بې خبري عذرنه بلل کېږي.

**فعالیت**: ستاسې په نظر، د دې لپاره چې خلک له قانون څخه خبر شي، کوم کارونه باید په ټولنه کې سرته ورسول شي؟

## د قانون له ډولونو سره آشنا شئ

قوانین په عام، خاص، داخلي او خارجي باندې وېشل شوي دي. قوانین د عادي خلکو او دولت ترمنځ اړیکې تنظیموي.

**عام قانون**: د قانوني قواعدو هغه ټولګه چې یوې خواته او یا دواړوته يې دولت وي، عام قانون ویل کېږي لکه: اساسي قانون د جزا قانون، مالي قانون، نړیوال عمومي قانون او داسې نور.

**خاص قانون**: د قانوني قواعدو هغه ټولګه چې د خلکو ترمنځ اړیکې تنظیموي، خاص قوانین يې بولي لکه: مدني قانون، سوداګریز قانون او نړیوال خصوصي قانون.

د قوانینو دغه وېش د هغو د اطرافو په اعتبار شوی دی. قوانین د تطبیق د ساحې په ارتباط هم وېشل کېږي. هغه قوانین چې په یوه مشخص اقلیم یعنې هېوادکې تطبیق شي، هغو ته داخلي قوانین ویل کېږي لکه: اساسي قانون او مدني قانون.

هغه قوانین چې د یو هېواد په مشخص اقلیم یا تر پولو پورې تړلې نه وي یعنې له هېواد څخه بهر تطبیق شي، هغو ته بهرني (بین المللي قوانین وېل کېږي، لکه: نړیوال عمومي او خصوصي قوانین.)

**فعالیت**: د خپلو ټولګیوالو په مرسته دوه بېلګې د عام قانون او دوه بېلګې د خاص قانون بیان کړئ.



### د لوست تکرار

- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................



### پوښتنې

۱- قانون تعریف کړئ.

۲- د قانون موخه څه ده؟

۳- د قانون د قسمونو نومونه واخلئ.

٤- عام قانون تعریف او له مثاله سره يې واضح کړئ.

٥- خاص قانون تعریف کړئ.



### کورنۍ دنده

په ټولنه کې د قانون د اهمیت په هکله خو کرښې ولیکئ.

# اساسي قانون Constitution

د مخه مو زده کړل چې دولت د خپلو ارګانونو د مختلفو چارو د سرته رسولو لپاره قوانين جوړوي، چې د دې قوانينو په وسيله د خلکو حقونه او مکلفيتونه تعيين او د دولتي مؤسسو ترمنځ اړيکې تنظيم کړي. د قوانينو له جوړېدو څخه موخه په ټولنه کې د نظم ټينګښت د ډاډ پيدا کول او د خلکو د ګټو تضمينول دي. په دې مورد کې اساسي قانون ستر رول لري. په دې لوست کې د قانون او د هېواد له اساسي قانون سره آشنا کېږئ.

## خبرې پرې وکړئ

ليکل شوی قانون د حقوقي منابعو په سر کې قرار لري چې حقوقي قواعد جوړوي. د قوانينو په منځ کې هم د اهميت او ارزښت له نظره سلسله مراتب ليدل کېږي؛ لکه: اساسي قانون او عادي قانون.

دلته پوښتنه مطرح کېږي چې:

## اساسي قانون څه شی دی؟

اساسي قانون د هر هېواد د سياسي او حقوقي جوړښت معرفي کوونکی دی چې د قوانينو د مور په توګه په ټولنه کې د ټولو قوانينو لوری ټاکي. اساسي قانون هغه قانون ته ويل کېږي چې د حکومت څرنګوالی، د واکمنۍ حدود او د خلکو غوره حقوق او دندې ټاکي. د اساسي قانون مهمه موضوع او محتويات د حکومتي چارواکو او رعيت ترمنځ د اړيکو مطالعه کول او د دې دوو ډلو دحقوقو، امتيازاتو، واکمنۍ او د صلاحيتونو د حدودو ټاکل دي. په پخوا زمانو کې اساسي قانون په لويو ټولنو کې لکه: په پخواني مصر، لويه آريانا او چين کې په تيت او پرک ډول تدوين شوی و او ياد دې ډولونو د ترکيب په شکل کې يې په دوديز (عرفي) ډول وجود درلود. خو د اتلسمې پېړۍ نه را وروسته يې ځانته نوې بڼه غوره کړې ده او د يوه داسې سند شکل يې اختيار کړی دی چې اساسي ترين اصول او حاکم قواعد يې په خپل ځان کې را غونډ کړي دي. د هر هېواد اساسي قانون له نورو سره توپيرلري. په دې معنا چې هر دولت د خپلو سياسي شرايطو له غوښتنو سره سم په خپل اساسي قانون کې د درج شوو موضوعګانو حجم تعينوي، نو ځکه ځينې اساسي قوانين مختصر او ځينې يې مفصل وي.

اساسي قوانين د هغوی د متن، شکل او ماهيت له مخې په مختلفو ډولونو وېشل کېږي، لکه: مدون (راغونډ شوی)اساسي قانون او غير مدون يا تعاملي اساسي قانون.

**فعاليت**: د اساسي قانون محتويات له کومو مطالبو څخه تشکيلېږي؟ د خپلې ډلې له غړو سره د مشورې نه وروسته يې وښياست.

## مدون يا ليکل شوی اساسي قانون

د دستورونو او مقرراتو هغه مجموعه ده چې په يوه راغونډ شوي متن کې په ځای شوي وي او د يوه ځانګړي طرز العمل او تشريفاتو په ترڅ کې د يوه خاص ارګان له خوا تصويبېږي. د نړۍ زياتره

هېوادونه د يوه ليکلي سند لرونکي وي چې د مدون اساسي قانون په نوم يادېږي، لکه د امريکا د متحده ايالتونو، سويزرلنډ، ناروې، بلجيم او افغانستان اساسي قوانين.

## غير مدون يا غير مکتوب اساسي قانون

دغه قانون لکه څرنګه چې له نامه څخه يې څرګندېږي په غير مکتوبي بڼه وي. بېله دې چې په يوه مجموعه کې سره را غونډ او ځای کړای شي. قواعد، دستورونه، قوانين، قضايي طريقې د دولت د رياست فرمانونه او د ټولنې دود او دستورونه پکې شامل دي. ځينې هېوادونه، لکه: انګلستان او بهوتان د دغه ډول ملي وثيقې او يا اساسي قانون لرونکي دي.

**فعاليت**: مدون او غير مدون اساسي قوانين سره پرتله کړئ او بيا دې د هرې ډلې استازي د خپلې اړوندې ډلې نظر خپلو ټولګيوالو ته واوروي.

## په افغانستان کې د اساسي قانون مخينه ( تاريخچه)

د افغانستان لومړنی اساسي قانون د نظام نامې (نظام نامۀ اساسي) په نامه د امان الله خان پاچا په همت د ۱۳۰۳ لمريز کال په لويه جرګه کې چې په پغمان کې راغونډه شوې وه او ۱۵۰٤ استازو پکې ګډون کړی و، تدوين او تصويب شو. د دې نظام نامې ځينې حقوق او آزادۍ، لکه: د ټولو هېوادوالو لپاره د تابعيت دمساوي حق، د شخصي حقوقو آزادي، شخصي خونديتوب ( مصئونيت)، د مريي توب او د يرغمل په توګه د افرادو ګمارلو لغوه کول، د ښوونې او روزنې حق، د ښوونځيو او خصوصي مدرسو آزادي، د لومړنيو زده کړو اجباري کول، د شتمنۍ خونديتوب او د ځورونې د منع کولو له حقونو څخه عبارت دي.

### د محمد نادر خان په سلطنت (۱۳۰۹هـ . ل. کال)کې د افغانستان د دولت اساسي اصولنامه

دويم اساسي قانون د ۱۳۰۹ لمريز کال د لويې جرګې له خوا چې ٥۲٥ استازو په کې ګډون کړی و، د افغانستان د اصولنامې په نامه سره تصويب شو. په دې اصولنامه کې يوازې يوه موضوع نوې ده چې هغې ته دموکراتيک او ولسي رنګ ورکوي او هغه د افغانستان د لومړني پارلمان له تاسيس څخه عبارت ده چې د ( ملي شورا او اعيان) دوه جرګې ( مجلسونه) يې درلودل. د دې اصولنامې له مخې کابينې د پارلمان په وړاندې مسؤوليت درلود.

### د محمد ظاهر شاه د سلطنت اساسي قانون چې په ۱۳٤۳ لمريز کال يا په ۱۹٦٤م. کې تصويب شو

دريم اساسي قانون د محمد ظاهر شاه په واکمنۍ کې وروسته له هغې چې د دې نوي اساسي قانون په متن باندې ډېر غور او بحث وشو، د ٤٥۹ استازو له خوا لاسليک کړای شو او د پاچا له توشيح وروسته نافذ او د اجرا وړ وګرځېد. په دې قانون کې د افغانستان خلکو ته د دوی په سياسي، اداري، فرهنګي او عدلي ژوندانه کې د زياتو بدلونونو وعدې ورکړای شوې وې:

**د محمد داوود خان د جمهوريت د ۱۳۵۵ لمريز کال د سلواغې د ۱۳ مې نېټې تصويب شوی اساسي قانون:**

څلورم اساسي قانون د سردار محمدداوود خان په جمهوريت کې تدوين شو. د جمهوريت په پيل کې محمد داوود خان د هغې بيانيې په ترڅ کې چې په ۱۳۵۲ لمريز کال د چنګاښ په ۲۶ مه نېټه يې واوروله، د دموکراسی پر بنسټ ولاړ اساسي قانون د تصويبېدو ژمنه کړې وه. دغه ژمنه دکوم دليل له يادولو پرته، څلور کاله وځنډېده. وروسته په ۱۳۵۵ لمريز کال کې د اساسي قانون مسوده په جريدو کې خپره شوه. د افغانستان په تاريخ کې د لومړي ځل لپاره د لويې جرګې له خوا د جمهور رييس ټاکل، د دولت رييس د جرم کولو، ملي خيانت، د ولسي جرګې له خوا د تهمتي کېدو او د لويې جرګې له خوا محاکمه کېدل ، د دې اساسي قانون مثبت ټکي دي.

**د افغانستان دموکراتيک جمهوريت اساسي اصول د ۱۳۵۹ لمريز کال د ثور لومړۍ نېټه:**

د افغانستان پنځم اساسي قانون، د افغانستان د دموکراتيک جمهوريت د اساسي اصولو په نامه په ۱۳۵۹ لمريز کال کې د افغانستان جمهوري دولت د انقلابي شورا له خوا په (۱۰) فصلونو او ۶۸ مادو کې په موقتي ډول تصويب شو او د اجرا وړ وګرځېده.

**شپږم اساسي قانون د ډاکتر نجيب الله د جمهوري رياست په زمانه کې وضع شو.**

د ۱۳۶۶ لمريز کال په لويه جرګه کې په ۱۳ فصلونو او ۱۴۹ مادو کې تصويب او د ډاکتر نجيب الله له خوا توشيح شو.

**اووم اساسي قانون هېڅکله نه تصويب او نه توشيح شو**

د افغانستان د نوي اساسي اصولو د متن وړانديز په ۱۱۴ مادو کې د (۵۰) کسيز کميسيون په واسطه د استاد برهان الدين رباني په زمانه کې تدوين شو. خو د جهادي تنظيمونو او د ملت د مختلفو قشرونو د نيوکو له امله چې د متن په مسوده باندې يې لرلې، توشيح ته ونه رسېد.



**زموږ د هېواد اوسنی اساسي قانون**

د اتم اساسي قانون مسوده د اساسي قانون په لويه جرګه کې چې د ۱۳۸۲ لمريز کال د لیندۍ د مياشتې په ۲۳مه او د ۲۰۰۳م. کال د دسامبر د مياشتې په ۱۴مه نېټه دايره شوې وه، تر بحث لاندې ونيول شوه او د ۱۳۸۲ لمريز کال د مرغومي په ۱۴ نېټه يې تصويب کړه او د جمهور رييس له توشيح وروسته نافذه شوه.

## د اساسي قانون محتويات

زموږ اساسي قانون د يوې مقدمې، دولسو فصلونو او له ۱٦۲ مادو څخه تشکيل شوى دى. لومړى فصل د دولت، دويم فصل د هېواد د اتباعو د اساسي حقوقو او دندو، دريم فصل د جمهور رييس، څلورم فصل د حکومت، پنځم فصل د ملي شورا، شپږم فصل د لويې جرگې، اووم فصل د قضا، اتم فصل د ادارې، نهم فصل د اضطرار د حالت، لسم فصل د تعديل، يوولسم فصل د متفرقه حکمونو او دولسم فصل د انتقالي حکمونو په اړه بحث کوي.

**آيا پوهېږئ چې د اسلام د سپيڅلي دين په اړه زموږ د اوسني اساسي قانون موقف څه شى دى؟**

د افغانستان شريف خلك چې په لومړۍ هجري قمري پېړۍ کې د اسلام په سپيڅلي دين باندې مشرف شول او دغه الهی وروستی قانون يې په خپله خوښه ومانه، نه يوازې دا چې تر اوسه پورې يې د يوه ملت په توگه د هغه له حکمونو څخه سرغړونه، نه ده کړې، بلکې د تاريخ په اوږدوکې يې د دې مقدس دين د مفاهيمو په ټينگښت، خپرولو او منلو کې يې هم ستر خدمتونه کړي دي. زموږ د هېواد اوسني اساسي قانون هم د دې حقيقت په پام کې لرلو سره د هېواد نوم د افغانستان اسلامي جمهوريت او د دولت رسمي دين يې د اسلام مقدس دين منلى دى او همدارنگه د هغه په دريمه ماده کې راغلي دي: **په افغانستان کې هېڅ قانون نه شي کولاى چې د اسلام د سپيڅلي دين د معتقداتو او احکامو مخالف وي.** چې د دغه صراحت له مخې د هېواد د نظام اسلامي والی په مختلفو حقوقی برخو کې شتون لري چې د دې هېواد ټولو غوښتنو ته يې هر وخت لبيك ويلی دی.

## آيا پوهېږئ چې زموږ هېوادوال په اساسي قانون کې کوم حقونه لري؟

د ټولنيز ژوند اړيکې نظم، قوانينو او مقرراتو ته اړتيا لري. که چېرې په يوه ټولنه کې نظم او قانون نه وي، ټولنه گډه وډه او پاشل کېږي. له دې امله ده چې په ټولنه کې د نظم او قانون ټينگښت او د گډوډۍ له منځه وړلو په خاطر، دولت منځ ته راځي. د مهمو مسايلو څخه يوه يې د دولت او هېوادوالو تر منځ اړيکو ته پاملرنه او د هېوادوالو د آزادۍ اندازه ده. له همدې امله ده چې د افغانستان په اساسي قانون کې دغې موضوع ته زياته پاملرنه شوې ده.

### الف- د خلکو سياسي حقوق

د افغانستان د ملت لوړترين سياسي حقوق د هغوی په خپل ټولنيز تقدير( سرنوشت) باندې حاکميت دی. د ملت د سياسي حقوقو ځينې برخې، لکه: د تابعيت حق، د هېواد په عمومي چارو کې د گډون کولو حق، په ټول ټاکنو کې د گډون او د رايې ورکولو حق، د گوندونو او غونډو د جوړېدو حق او بې له وسلې د مظاهرو او غونډو جوړېدو حق او داسې نور....

## ب- د خلکو مدني حقوق او آزادۍ

له مدني حقونو څخه موخه هغه حقوق دي چې سړی په دې خاطر چې د ټولنې غړی دی، له هغو څخه برخمن کېږي. ځینې مدني آزادۍ او حقونه، لکه: د ژوندانه حق، د آزادۍ حق، شخصي امنیت، د قانون په وړاندې د برابرۍ حق، د عدالت غوښتنې او وکیل ټاکنې حق، داستوګنځي خوندیتوب، د واده کولو او کورنۍ د جوړېدوحق، له روغتیایي خدمتونو څخه برخمن کېدل، د کوچنې پالنې حقونه، د نورو د حقونو رعایتولو او له داسې نورو څخه عبارت دي.

## ج- د خلکو فرهنګي حقوق او آزادۍ

په فرهنګي آزادیو کې ځینې یې عبارت دي: د نر او ښځې لپاره په دولتي تحصیلي مؤسسو کې په وړیا ډول د لیسانس تر کچې زده کړو حق، په جبري توګه د منځنیو زده کړو ترسره کول، د ګټورو پروګرامونو طرح کول او په مورنۍ ژبه د هغو د تطبیق او د زده کړې حق. دولت دنده او مسؤولیت لري چې د ښځو لپاره د زده کړو د پرمختګ او توازن د رامنځ ته کولو حق، د کوچیانو د زده کړو او په هېواد کې د بې سوادۍ د له منځه وړلو په خاطر، واحد تعلیمي نصاب طرح او عملي کړي.

## د- د خلکو اقتصادي حقوق

ځینې اقتصادي حقوق، لکه: هر افغان ملکف دی چې د قانون له حکمونو سره سم دولت ته مالیه او محصول ورکړي، د مالکیت حق له تېري نه خوندي دی. هر څوک د خپل کسب مشروع کار د لاسته راوړنې مالک دی، د کسب او کار د ټاکلو حق، د آزادانه کارکولو حق، د مساوي کا رېه بدل کې د مساوي مزد اخیستلو حق، او داسې نور. د اساسي قانون او په ځانګړې توګه د اساسي حقونو په رڼا کې د هېوادوالو دنده او وجیبه ده چې په اساسي قانون باندې په ښه توګه ځان پوه کړي، د هغه له حکمونو سره سم عمل وکړي او چا ته اجازه ورنه کړي چې له هغه څخه سرغړونه وکړي.

**فعالیت**: ستاسې په نظر نور کوم موضوعات په سیاسي، مدني، فرهنګي او اقتصادي حقونو کې شاملېږي؟ لېست یې کړئ.

### د لوست تکرار

• ..........................................................................................................

• ..........................................................................................................

### پوښتنې

۱- اساسي قانون تعریف کړئ.

۲- عادي قانون څه شی دی؟

۳- د افغانستان د ۱۳۰۹ لمریز کال د اصولنامې ولسي او دموکراتیک اړخونه بیان کړئ.

۴- زموږ د هېواد اوسنی اساسي قانون څو فصله او څو مادې لري؟ او په کومه نېټه نافذ شوی دی؟

۵- دولت ملکف دی چې په هېواد کې د ښځو، د ماشومانو د زده کړې، د بې سوادۍ د له منځه وړلو په خاطر ګټور پروګرامونه طرحه او عملي کړي، دا د اساسي قانون په کومه ماده کې راغلي دي، سم ځواب یې (√) په علامه سره په نښه کړئ.

الف- ۴۳، ب- ۴۴، ج- ۴۵، د- ۴۶ .



کورنۍ دنده

د افغانستان د خلکو د سیاسي حقوقو په هکله څو کرښې ولیکئ.

## د څپرکي لنډیز

• دولت په حقیقت کې سیاسي او رهبري کوونکې قدرت دی چې له حقوقي پلوه درې ګوني قوې یعنې اجرائیه، مقننه او قضائیه قواوې په بر کې نیسي.

• دولتونه د شکل له مخې په درې ډوله وېشل شوي دي. ۱- د واکمنۍ (استقلال) له مخې. ۲- د ترکیب له مخې. ۳- د حکومت د شکل له مخې.

• د افغانستان دولت د حقوقي جوړښت له نظره د ریاستي نظام لرونکی دی چې د افغانستان اسلامي جمهوریت په نامه یادیږي. جمهور رییس د اسلامي جمهوري دولت په سر کې ځای لري، دوه، لومړی او دویم مرستیالان لري.

• قانون د انسان کړو وړو ته د نظم ورکولو د یوشان قواعدو سیستم دی؛ په بله ژبه قانون د ټولنې د وګړو تر منځ د اړیکو د تنظیمېدو محور بولي لکه: د جزا قانون، مدني قانون، سوداګریز قانون او داسې نور.

• اساسي قانون هغه قانون ته ویل کېږي چې د حکومت څرنګوالی او د هغه د اختیاراتو حدود او د خلکو حقوق او دندې ټاکي. د بېلګې په توګه: د دولت شکل (جمهوري یا سلطنتي، د پاچا یا جمهور رییس) د قدرت حدود او داسې نور.

• د افغانستان لومړنی اساسي قانون د نظام نامي (نظامنامه اساسي) په نامه یادیږي چې د شاه امان الله خان په همت په ۱۳۰۳ لمریز کال کې تدوین او تصویب شو.

• څرنګه چې زموږ هېواد یو اسلامي هېواد دی، نو ځکه زموږ اوسنی اساسي قانون هم دغې حقیقت ته په پام سره د هېواد نوم د افغانستان اسلامي جمهوریت او د دولت رسمي دین یې د اسلام سپیڅلی دین قبول کړی دی. زموږ د هېواد د اساسي قانون په دریمه ماده کې راغلي دي: په افغانستان کې هېڅ قانون نه شي کولای چې د اسلام د سپیڅلي دین د معتقداتو او احکامو مخالف وي.

# سياسي مشارکت

په دې څپرکي کې لاندې مطالب لولئ:

- سياسي مشارکت څه شی دی؟
- د سياسي مشارکت لارې
- د ښځو ګډون

# د څپرکي موخې

**د دې څپرکي په لوستلو سره تاسو په لاندې پوهنيزو او مهارتي موخو باندې برلاسي کېږئ:**

- د سياسي مشارکت په تعريف به پوه شئ؛
- د سياسي مشارکت له اهميت سره به آشنا شئ؛
- د سياسي مشارکت لارې او طريقې به وپېژنئ؛
- په دې به پوه شئ چې ټاکنې د سياسي مشارکت له طريقو څخه يوه طريقه ده؛
- په دې به پوه شئ چې سوله ييزې مظاهرې د سياسي مشارکت له طريقو څخه يوه طريقه ده؛
- پوه به شئ چې په سياسي چاروکې نظر ورکول د سياسي مشارکت، يو ډول دی؛
- د ښځو د سياسي مشارکت د اهميت په هکله به معلومات لاسته راوړئ؛
- د ښځو د سياسي مشارکت په ډولونو باندې به وپوهېږئ؛
- د نظام په سلامتيا کې به د سياسي مشارکت رول درک کړای شئ؛
- سياسي مشارکت به تحليل کړای شئ.
- د سياسي مشارکت اهميت به بيان کړای شئ.
- د سياسي مشارکت مختلفې لارې به توضيح کړای شئ.
- له رسينو څخه به د خپلو نظريو د څرګندولو لپاره ګټه واخيستلای شئ.
- د ښځو د سياسي مشارکت اهميت به توضيح کړای شئ.
- په سياسي مسايلو کې به له مشروع لارو څخه ګټه وکړای شئ.
- د سياسي نظام په سلامتيا کې به د سياسي مشارکت رول بيان کړای شئ.

# سیاسي مشارکت څه شی دی؟

مخکې مو زده کړل، هغه اصول او مقررات چې حکومتي نظام د هېواد د اداره کوونکې قوې بنسټ ټاکلی دی، د اساسي قانون په نوم یادېږي. اساسي قانون د ټولو مقرراتو د ټولګې ( مجموعې) څخه تشکیل شوی دی چې د دولت شکل او د هېواد دريځ ګونو قوو عالي سازمان او يو له بله سره د هغو اړيکې او د دولت په وړاندې د خلکو حقوق او آزادۍ مشخصوي. په دې څپرکي کې د سیاسي مشارکت، ډولونو او د ښځو له مشارکت سره آشنا کېږئ.

## خبرې پرې وکړئ

خلك كولای شي چې له مختلفو لارو څخه په سیاسي فعالیت لاس پورې کړي او په سیاسي چارو کې ګډون وکړي. دلته دا پوښتنه پیدا کېږي چې:

**فعالیت**: ولې موږ د خپل ځان او هېواد د سرنوشت په ټاکلو کې د مداخلې حق لرو؟

انسانان د خپل مادي او معنوي ژوند د بشپړېدو او ښه کېدو په لاره کې د يو بل مرستې ته اړتيا لري. يوازې د مشارکت له لارې کولای شي چې خپلې اړتیاوې پوره کړي. مشارکت په کومه خاصه طبقه پورې اړه نه لري، بلکې د ټولنې په ټولو خلکو پورې اړه لري، له دې امله ده چې مشارکت ته د خلکو را جلبولو له ډېرو پخوا زمانو څخه په مختلفو ټولنو کې د خلکو پام ځانته را ګرځولی و. د مشارکت لغوي معنا يوبل ته د خير ښېګڼې او مرستې رسولو، يو له بل سره مرسته، دوستي او په چارو کې له ګډون کولو څخه عبارت دی. تاسې په خپل ورځني ژوند کې په ډېرو کارونو کې مشارکت کړی دی، د بېلګې په توګه: تاسې له مور او پلار سره د کور په چارو کې، په ټولګي کې له خپلو ټولګيوالو سره، په درسونو، د کتاب په تمرينونو او ستاسې دِ ښوونځي په ورزشي ټيم کې ګډون کړی دی. تردې ځایه پورې تاسې د مشارکت له لغوي معنا سره آشنا شوئ. دلته پوښتنه کېږي چې سیاسي فعالیت څه شی دی؟ د هغو فعالیتونو مجموعې ته چې د ټولو سرنوشت سره اړيکه لري، په ټولنه کې د حاکمیت بهیرته شکل ورکوي، سیاسي فعالیت ويل کېږي. د سیاسي مشارکت تر ټولو ساده بڼه ګوندونو، خلکو او سیاستونو ته د خلکو له رايي ورکولو څخه عبارت ده. خلك د خپلو دنيوي او اخروي ښېګڼو پر بنسټ خپل استازي او مشران ټاکي، ځاري او لرې کوي يې هر څوك د خپلې پوهې او ايماندارۍ په بنسټ مهمو دولتي څوکيو ته لار پيدا کوي د سياسي مشارکت تر

ټولو ساده شکل، ګوندونو، خلکو او سیاستونو ته د خلکو رایه ورکول دي. د سیاسي مشارکت نور ډولونه د انتخاباتي مبارزو، د سیاستمدارانو تر خپل نفوذ لاندې راوستلو، د اغېزمنو ډلو او سیاسي ګوندونو له تشکیل څخه عبارت دي.

## د سیاسي مشارکت د مراتبو له سلسلې سره آشنا شئ

د سیاسي مشارکت د مراتبو سلسله عبارت ده له:

- د سیاسي یا اداري مقام درلودل.
- د سیاسي یا اداري مقام لټون.
- په یوه سیاسي سازمان کې فعال غړیتوب.
- په عمومي غونډو، مظاهرو او نورو کې ګډون.
- په یوه سیاسي سازمان کې فعال (موثر) غړیتوب.
- په غیر رسمي سیاسي برخو کې فعال غړیتوب.
- په غیر رسمي سیاسي برخو کې مشارکت.
- رایه ورکول.



په مختلفو ټولنو کې د مشارکت او سیاسي نفوذ اندازه متفاوته وي. ټولنپوهانو او ارواپوهانو په سیاسي بهیر کې د خلکو د مشارکت کولو او مشارکت نه کولو په اړوند په خپلو څېړنو کې متفاوتو لاملو نو ته لکه: کورنۍ، ټولنیز اقتصادي وضعیت، ښوونځیو، ټولنیزو رسنیو، سازماني او ګروپي هویت، مدني او سیاسي فرهنګ او داسې نورو ته اشاره کړې ده. څرنګه چې سیاسي مسایل د انسان د ژوندانه پر مختلفو برخو ،لکه: په ټولنیز نظام، ارزښتونو،اقتصادي نظامونو او پراختیا باندې مستقیم اغېز لري او د ټولو سرنوشت وربورې تړلی دی، له همدې کبله ده چې د ملت ټولو خلکو ته باید په هغه کې برابره برخه ورکړای شي. په ټولیزه توګه ویلای شو چې سیاسي مشارکت د انسان د سرنوشت په ټاکلو کې د هغه له مداخلې څخه

عبارت دی. واقعي مشارکت د ژوندانه په ټولو پړاوونو کې له تصمیم نیولو څخه تر عمل کولو او له عمل کولو څخه تر ارزیابی او بیا اصلاح کولو پورې، په برکې نیسي.

## د سیاسي مشارکت اهمیت

- خلکو ته زیات رول ورکوي.
- د تصمیم نیولو د قدرت د مرکزونو پراختیا.
- د بورو کراسي د بارسپکول.
- د زیات پیوستون لاسته راوړل.

## د سیاسي مشارکت په هکله د اسلام د سپیڅلي دین هدایت:

الله پاک د واقعي مومنانو د صفتونو په اړه فرمایي: ﴿**وَاَمْرُهُمْ شورى بَيْنَهُمْ**﴾ (الشورى: ۳۸) ژباړه: او د دوی کار د دوی په منځ کې په مشوره سره دی، نو په سیاسي او مصلحتي چاروکې د دوی برخلیک د دوی په خپل لاس کې دی او هېڅوک نه شي کولای چې د دوی کارونه د دوی له خوښې پرته په زور او جبر سره په خپل لاس کې واخلي. که چېرې داسې وکړي، نو د اسلام له حکمونو سره یې مخالفت کړی دی.

**فعالیت**: آیا د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د سپیڅلي ژوندانه له خوی او عادت څخه داسې مثال راوړی شئ چې د اصحابو سره د ده د مشورې کولو ښکارندوی وي؟

### دلیل راوړئ

ولې ځینې هېوادونه، نه پرېږدي چې هېوادوال یې د هېواد په اداره کې برخه واخلي؟ په زیاتره هېوادونو کې نه یوازې دا چې خلک په سیاست کې ګډون کولو ته نه هڅول کېږي، بلکې هغوی ته په سیاست کې د برخه اخیستنې اجازه هم نه ورکول کېږي. دغه موضوع دوه اساسي عوامل لري.

۱- حکومت په سیاست کې د مداخلې کولو د محدودیت قدرت لري. تر هغه وخته پورې چې بې سوادي، عمومي بې خبري، ضعف، د تشکیل نشتوالی، د سیاسي مسایلو په درک کې د خلکو بې خبري او د دوی کمزورتیا موجوده وي، د حکومت لپاره دا کار څه ناڅه آسان دی چې وکړای شي په سیاست کې مداخله محدوده کړي.

۲- حاکمان اکثراً وېرېږي، هسې نه چې د دوی ارزښتونه، ګټې او غوښتنې له منځه ولاړې شي. په ټولیز ډول، مستبد دولتونه له مختلفو لارو څخه کار اخلي، چې خلك په سیاست کې له ګډون کولو څخه منع کړي. دا په دې معنا ده چې سیاسي کسانو ته په سیاسي بهیر کې لږ چانس ورکول کېږي.



## د لوست تکرار

- ......................................................................................................
- ......................................................................................................
- ......................................................................................................
- ......................................................................................................
- ......................................................................................................



## پوښتنې

۱- د مشارکت لغوي معنا څه ده؟

۲- په ښوونځي کې د خپل مشارکت څو مثالونه بیان کړئ.

۳- په سیاسي مشارکت کې کوم فعالیتونه شامل دي؟

٤-ستاسې په نظر په مختلفو ټولنو کې سیاسي مشارکت ولې متفاوت دی؟

٥- مستبد رژیمونه له کومو لارو څخه غواړي چې خلك په سیاست کې له مداخلې څخه لرې وساتي؟ په دې برخه کې خپل نظر څرګند کړئ.



## کورنۍ دنده

د مشارکت د ښېګڼو یا ګټو په هکله څو کرښې ولیکئ.

# د سیاسي مشارکت طریقې

په تېر درس کې مو زده کړل چې سیاسي چارې د ټولنې د خلکو په ژوندانه باندې مستقیم اغېز لري. نو باید د ټولنې هر غړي ته په سیاسي فعالیتونو او د سر نوشت په ټاکلو کې له نورو سره برابر حق ورکړای شي چې خلک وکړای شي له مختلفو لارو څخه د خپلو استازو حاکمانو او مشرانو په ټاکلو، څارنې او لرې کولو کې برخه واخلي.

## خبرې پرې وکړئ

- آیا تاسې تر اوسه پورې په ټاکنو کې ګډون کړی دی؟
- زموږ په دولت کې خلک له کومو لارو څخه کولای شي په ټاکنو کې برخه واخلي؟

د ټولنې خلک کولای شي چې په لاندې طریقو د خپل هېواد په سیاسي فعالیتونو کې برخه واخلي.

### ۱- ټاکنې

پوهېږئ چې ټاکنې څه شی دی؟ ټاکنې د خلکو مشروع حق دی؛ خلک په خپله اراده سره خپل مشر ټاکي؛ فشار، جبر او زور نه شي کولای چې د خلکو غوښه اراده سلب کړي. ټاکنې د هېواد د چارو په اداره کې د خلکو د ګډون او د خپل سیاسي سر نوشت په ټاکلو کې مهمترینه وسیله ده. په بله ژبه ټاکنې په ټولنه کې د مقام، منصب او مسؤولیت لپاره د عمومي رایو له لارې د اشخاصو د ټاکلو رسمي بهیر دی. ټاکنې په مختلفو هېوادونو کې د ولسواکۍ د بهیر یوه نه جلا کېدونکې او د نړیوالو منل شوو معیارونو لرونکې برخه ده چې د هغې له رعایتولو پرته نه شو کولای چې رژیم ته مشروعیت وروبخښو او د ولسواکۍ ادعا وکړو. نن سبا د دې بحث په چوکاټ کې دوه ډوله ټاکنې له ځانګړې اهمیت څخه برخمنې دي. یو یې په جمهوري رژیمونو کې د دولت د رییس ټاکنې او بل ډول یې د مقننه مجلس ( پارلمان) لپاره د خلکو د استازو ټاکنې دي. د دې دوو ډولو ټاکنو اهمیت په دې کې دی چې هر څوک د یوه هېوادوال په توګه کله چې رایه ورکوي، په واقعیت کې د خپل هېواد په سر نوشت کې برخه اخلي.

### د ټاکنو مهمترین اصول په لاندې ډول دي

- ټول هېوادوال ښځه وي او که نر چې قانوني عمر یې پوره کړی وي، حق لري چې په ټاکنو کې ګډون وکړي.
- ټاکنې د آزادو، عمومي، پټو او مستقیمو رایو اچونو له لارې ترسره کېږي.
- رایه ورکوونکي په ټاکنو کې د مساوي حقوقو د درلودلو له حق څخه په ګټه اخیستنې سره په ټاکنو کې برخه اخلي.

- رایه ورکوونکي په ټاکنو کې د  یوې رایې حق لري، یوازې د خپل ځان له خوا رایه ورکوي.
- رایه ورکوونکي په آزاده اراده  په ټاکنو کې ګډون کوي.

په رایه ورکوونکو او نوماندانو باندې د ژبې، مذهب، قوم، جنس، قبیلې، استوګنې او ټولنیز موقف په خاطر هر ډول مستقیم او غیر مستقیم محدودیت منع دی. که چېرې د ټاکنو په وخت کې له پورتنیو اصولو څخه کوم یو یې مات او یا تر پښو لاندې شي، ټاکنې تقلبي او غیر قانوني شمېرل کېږي.

**فعالیت**: د تقلبي ټاکنو په هکله له خپلو انډیوالانو سره له مشورې نه وروسته خپل نظر نوروته واوروئ.

## د نوماندانو پېژندل

د نوماندانو د پېژندنې لپاره مختلفې لارې چارې موجودې دي. د پیژندنې لومړنۍ طریقه د هغو مهمو ټکو څېړنه ده چې نوماندان یې په خپلو وینا وو او تبلیغاتو کې په څرګنده توګه بیانوي. دویمه طریقه د هغو موضوعاتو بررسي ده چې د نوماندانو مخالفان یې د دوی په هکله په ورځپاڼو، مجلو، بیانیو او مختلفو محفلونو کې بیانوي. دریمه طریقه د دوی د پلویانو پېژندنه ده یعنې دا چې کوم ډول خلک او ګروپونه له کومو ځانګړنو سره له دوی څخه ملاتړ کوي او تبلیغ ورته کوي، پوسترونه ورته چاپوي او په هغو ځایونو باندې یې چې دولت اجازه ورکوي، نښلوي. څلورمه طریقه دا ده چې نوماندانو ته باید په رادیو او تلویزیون کې د مباحثو زمینه مساعده شي چې له دغې لارې خپل کاري پروګرامونه خلکو ته وړاندې او واوروي. خلک باید د خپل نظر وړ نوماندانو څخه بشپړه پېژندنه ولري، که چېرې هغه ونه پېژني او د نورو په تشویق د رای اچونې صندوقونو ته ولاړ شي او رایه ورکړي، د دوی دا ډول ټاکنه به یوه ړنده ټاکنه وي.

**فعالیت**: د پورته یادو شوو موادو څخه پرته د نوماندانو د پېژندنې لپاره نورې کومې لارې موجودې دي؟ له خپلې ډلې سره د مشورې نه وروسته دې د ډلې استازي د ډلې نظر نورو ته واوروي.

## د ټاکنو طریقه

د ټاکنو په وخت کې څو کسه د جمهوري ریاست او یا ولسي جرګې د استازیتوب لپاره ځانونه نوماندوي. د دوي صلاحیتونه د استازیتوب لپاره د لازمو شرطونو د درلودلو له نظره څېړل کېږي. وروسته ټول او یا ځینې یې تایید او خلکو ته وروپېژندل کېږي. له دې نه وروسته:

- نوماندان د خپل ځان او یا د جمهوري ریاست او ملي شورا په مقامونو کې د خپل کاري پلان په معرفي کولو پیل کوي.

• خپل سوابق خلکوته وړپېژني.
• خپل ځان خپلواک او یا د اړوند ګروپ او ګوند استازی معرفي کوي.
• وایي چې که چېرې جمهور رییس شوم او یا مې پارلمان ته لار ومونده دا ډول کارونه به وکړم.
• د اسلام له سپېڅلي دین څخه دفاع کوم.
• په دولتي پُستونو کې، پرهیز ګار، تحصیل کرده او وطن دوست، تجربه کاره انسانان د دوی له مسلک سره سم مقرروم.
• د هېواد پوهنې ، د ښوونکي د ژوندانه وضعیت او معاش ته کلکه پاملرنه کوم؛ ځکه چې د یوې ټولنې لوړتیا او ترقي دیوه هېواد په پوهنه پورې اړه لري.
• کوښښ کوم چې پخوانۍ فابرېکې فعالې کړم، د بې کارانو لپاره کار پیدا کړم؛ د دولت د کارمندانو معاش ته پاملرنه کوم؛ چې کارمندان هوسا ژوند وکړي او د رشوت او اداري فساد نه ځانونه لرې وساتي.

## ټاکنیز اخلاق

ټاکنیز نوماندان باید ټاکنیز اخلاق ولري. د بېلګې په توګه ټاکنیز نوماندان باید د ځان په معرفي کېدو کې مبالغه ونه کړي؛ خلکوته د درواغو وعدې ورنه کړي؛ د نورو نوماندانو سپکاوی ونه کړي؛ له تحقیر، تهمت او توهین څخه ډډه وکړي؛ د خپلې خوښې نوماند ته د زیاتو رایو د ترلاسه کولو لپاره په ناوړه کارونو لاس پورې نه کړي؛ له دې امله ویلی شو چې ښه او سالم انتخابات هغه وخت تر سره کېدای شي چې خلک د خپلې خوښې استازي په آزاده توګه وټاکي او د خپلو مخالفینو نظریې وزغمي او درناوی یې وکړي. له خپل ټاکنیز مخالف سره د دښمنۍ احساس ونه کړي او یو له بله سره د دوستۍ په فضا کې راشه درشه وکړي.

**فعالیت**: د ډلو غړي دې په خپلو منځو کې مشوره وکړي. د ټاکنیزو د ښو او بدو اخلاقو فهرست دې ترتیب کړي او بیا دې د دوی استازي هغه نورو ته واوروي.

## ۲- رفرانډوم یا د خلکو رایو ته مراجعه کول

د رفرانډوم کلمه ( د خلکو رایوته د مراجعې) په معنا او د سیاسي مشارکت له طریقو څخه یوه طریقه ده. رفرانډوم هغه طریقه ده چې د هغې په وسیله د خلکو رایو ته په مستقیمې مراجعې سره، عمومي عقیده معلومولی شو. په بله ژبه رفرانډوم ملت ته د یوې خاصې سیاسي مسئلې د راجع کولو او د هغې په هکله د عمومي رای ګیرۍ او مستقیم تصمیم نیونې څخه عبارت دی. په ځینو هېوادونو کې لکه استرالیا په اساسي قانون کې بدلون راوستل، فقط عمومي رایو ته د مراجعې له لارې امکان لري. د اسلام په تاریخ کې لومړنی رفرانډوم د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په زمانه کې ترسره شو.

کله چې عمر رضي الله عنه زخمي شو، نو د ځان پر ځای د ځای ناستي په خاطر يې د حضرت پيغمبر ﷺ د پخوانيو يارانو شخه د شپږو کسو وړانديز وکړ چې د ده له مرګ څخه وروسته له دوی څخه، يوې خليفه شي. عبدالرحمن بن عوف وظيفه واخيسته چې د مدينې د خلکو په منځ کې رفرانډوم وکړي او دا معلومه کړي چې د خلکو اکثريت د چا په خلافت باندې قناعت او رضايت لري، نو ويلی شو چې د بشر په سياسي تاريخ کې لومړنی رفرانډوم، همدغه رفرانډوم و. رفرانډوم د لومړي ځل لپاره په شپاړسمه ميلادي پېړۍ کې د سويس په هېواد کې د خلکو د نظر د معلومولو لپاره منځته راغی. زموږ اساسي قانون په پنځه شپېتمه ماده کې جمهور رييس ته حق ورکړل شوی چې: جمهور رييس کولای شي په مهمو ملي، سياسي، ټولنيزو او يا اقتصادي چارو کې د افغانستان د خلکو ټول پوښتنې ته مراجعه وکړي، ټول پوښتنه بايد د دې اساسي قانون د حکمونو مخالفه او د هغه د تعديل مستلزمه نه وي.

**فعاليت**: د رفرانډوم د منفي او مثبتو اړخونو په هکله څو کرښې وليکئ.

## ۳- مظاهرې يا لاريونونه څه شی دي او له هغو نه څه ګټه اخيستل کېږي؟

د سياسي ګډون ( مشارکت) يوه طريقه ده چې خلک په سر کونو، ميدانونو او په عامو لارو کې د غونډو او لاريون په وسيله، د ليکل شويو او شفاهي شعارونو په ورکولو سره، خپلې غوښتنې د حاکمو مقاماتو د يو اقدام، تصميم او سياست څخه د اعتراض په ترڅ کې څرګندوي چې دې عمل ته مظاهره يا لاريون وايي. د اساسي قانون ۳۶ مادې د افغانستان اتباعو ته حق ورکړی چې د روا او سوله ييزو غوښتنو د تامين لپاره له قانون سره سم بې وسلې غونډې او مظاهرې وکړي.

**فعاليت**: د هغو مظاهرو څخه چې په تلويزيون کې مو ليدلې دي يو څو مثالونه د ټولګي د پلاوي په واسطه نورو ته بيان کړئ.

## ۴-د ګوندونو او انجمنونو همکاري

په يوه ټولنه کې خلک په مختلفو غوښتونو، مفهومونو او عقيدو ژوند کوي، ټولنه بايد داسې لارې پيدا کړي چې هغوی وکولای شي خپلې عقيدې بيان کړي؛ له هغو نه دفاع وکړي او د قانون په چوکاټ کې يې پلې او عملي کړي. هغه لارې چې ټولنې د دې چارو لپاره د هغو وړاندوينه کړې ده، هغه د ګوندونو او انجمنونو جوړول دي.

## آيا پوهېږئ ګوند څه شی دی؟

ګوند هغو تشکيلا تو ته وايي چې د هغې غړي د ټولنې د جوړښت په واک باندې د کنټرول، د خپلو او د ټولې ټولنې د غوښتنو د لاس ته راوړلو لپاره په هغې اغېزه اچوي. د هېواد د اساسي قانون په ۳۵ ماده کې د ټولنو او غونډو او سياسي ګوندونو د تشکيلېدو په اړه داسې راغلي دي:

((د افغانستان ټول خلك حق لري چې د خپلو مادي او يا معنوي غوښتنو د تأمين كولو لپاره د قانون له حكمونو سره سم ټولنې جوړې كړي، د افغانستان خلك حق لري چې د قانون له حكمونو سره سم سياسي گوندونه جوړ كړي، په دې شرط چې :

۱- دگوند مرامنامه او اساسنامه د اسلام د سپيڅلي دين د احكامو او په دې اساسي قانون كې د راغلو نصوصو او ارزښتونو مخالفه نه وي.

۲- دگوند تشكيلات او مالي سرچينې ښرگندې وي.

۳- نظامي او نظامي ډوله تشكيلات او هدفونه ونه لري.

٤- له بهرنيو سياسي گوندونو يا نورو بهرنيو منابعو سره تړلی نه وي.

۵- د قوم، سمت، ژبې او فقهي مذهب په بنسټ دگوند جوړول او فعاليت كول جواز نه لري.

هغه جمعيت او گوند چې د قانون له حكمونو سره سم جوړېږي، د قانوني موجباتو او با صلاحيته محكمې له حكمه پرته نه منحل كېږي)).

گوندونه د نننې عصر په ولسواكۍ كې ډېر مهم سازمانونه گڼل كېږي. د ځينو نظر پوهانو په عقيده، ولسواكي دگوندونو له سيالۍ څخه پرته بل شی نه دی. دگوندونو شتون په يوه ټولنه كې ډېرې پايلې او اغېزې لري، لكه:

• د خلكو غوښتنې اوربدل كېږي او د ستونزو د حل لپاره لارې لټول كېږي.

•سياست كوونكي له هغه څه نه چې په ټولنه كې تېرېږي، خبرېږي.

•گوندونه او انجمنونه  هغه اطلاعات چې د سياست كوونكو د چارو او كړو وړو نه يې په لاس كې لري، د خلكو غوږونو ته يې رسوي او د ښه او وړ شخص په ټاكلو كې مرسته كوي.

**فعاليت**: له خپلې ډلې سره خبرې وكړئ. د پنځو گوندونو نومونه چې پېژنئ بيان يې كړئ.

## ۵- رسنۍ



رسنۍ له يوې خوا د تبليغاتو د يو مهم عامل او له بلې خوا په عمومي افكارو د يو اغېزمن ټولنيز عامل په حيث په ټولنه كې له فوق العاده اهميت څخه برخمنې دي. نن ورځ هغه پر مختگونه چې د اړيكو د تكنالوژۍ په برخه كې راغلي دي، رسنيو له هرې دورې څخه اوس ډېر اهميت موندلی دی، ځكه خلك د

پیغامونو د ابلاغ او استولو ، د افکارو د بیانولو او د مفاهیمو د انتقال لپاره له رسنیو څخه ګټه اخلي.

همدارنګه، خلک، ډلې او سیاسي ګوندونه له رسنیو څخه:

• د خارجي او داخلي خبرونو او اطلاعاتو له لارې د خلکو خبرتیا،

• د سیاسي او ټولنیزو مسئلو د تفسیر او تحلیل له لارې خلکو ته د تفکر او نظریاتو د زمینې برابرولو،

•د خلکو د پوهاوي.

• او د ټولنیزو موخو او اساسي پروګرامونو څخه د خبرتیا او ودې په موخه له رسنیو استفاده کوي.

**فعالیت**: له خپلې ډلې سره په سیاسي ګډون د رسنیو د ښې او بدې اغېزې په اړه بحث وکړئ.

## د لوست تکرار

• ........................................................................................................

• ........................................................................................................

• ........................................................................................................

• ........................................................................................................

## پوښتنې

۱- د ښې ټاکنې په اړه څو کرښې ولیکئ.

۲- رفرانډوم تعریف کړئ.

۳- له مظاهرو نه په کوم مقصد کار اخېستل کېږي؟

٤- له رسنیو نه په کوم مقصد کار اخېستل کېږي؟

۵- د سیاسي ګډون طریقې په ګوته کړئ.

## کورنۍ دنده

د هغو ګوندونو په اړه چې زموږ په هېواد کې د فعالیت اجازه لري، خپل نظر په څو کرښو کې ولیکئ.

# د ښځو ګډون

مخکې ووېل شول چې ګډون په مختلفو شکلونو سره، لکه: په ټاکنو، په رايو اچولو، ټول پوښتنو (رفرانډوم)، ګوندونو، انجمنونو او لاریونونو او داسې نورو کې صورت نیسي. په دې لوست کې تاسې په سیاسي فرهنګي، اقتصادي او ټولنیزو چارو کې د ښځو له ګډون سره آشنا کېږئ.





## خبرې پرې وکړئ

ښځو د بشري ټولنې د بدن د نیمايي برخې په توګه د ټولې بشري ټولنې یو اساسي رکن جوړ کړی دی چې د پېړیو په اوږدو کې یې د هرې ټولنې په ټولنیز جوړښت کې خپل جوړونکی رول لوبولی دی او نن ورځ هم په نړۍ کې خپل جوړونکی رول لوبوي. په دې ځای کې پوښتنې پیدا کېږي چې:

- په فرهنګي، سیاسي او اداري چارو کې له ګډون نه د ښځو محروموال څه پایلې لري؟
- په سیاسي سازمانونو او ګوندونو کې د ښځو ګډون دوی له کومو حقوقو برخمنې کوي؟
- ښځې څنګه کولای شي چې په نړۍ کې د رايې او ګډون حق لاس ته راوړي؟
- رايه څه معنا لري؟

ښځو د بشریت د تاریخ په اوږدو کې په مختلفو وختونو او مرحلو کې د خپلو حقه حقونو څخه بې برخې شوي دي. د اسلام د ستر پیغمبر له بعثت نه د مخه په عربي ټولنه او حتی د هغه وخت په نورو هېوادونو کې ښځو ته د مناسبو حقونو په ورکړه څوك قایل نه وو. له دوی سره د یوې مالي معاملې په څېر چلند کېده، خو د اسلام د دین په خپرېدو سره د قرآن د لارښوونو او سنتو په رڼا کې ښځې له ځانګړې عزت او منزلت څخه برخمنې شوې. د ژوندانه په ټولو برخو کې ورته خپل

حقونه ورکړل شول او د نارینه وو سره یو ځای اوږه په اوږه په سیاست، اقتصاد او ښوونه او روزنه کې برخمنې شوې.

په اروپا کې د منځنیو پېړیو نه وروسته د فرانسې د انقلاب په جریان کې او د رنسانس په پیل سره د ښځو د سیاسي خوځښت مخینه او د هغه اړوند نظریات منځ ته راغلل د فرانسې انقلاب په لړ کې ښځو د ښځو انقلابي کمیسیون په جوړولو اقدام وکړ، د عمومي ټاکنو د لاس ته راوړلو لپاره یې په نړۍ کې ډېره اوږده مبارزه وکړه. د لومړنیو خوځښتونو غړو د ټاکنو یا د رای حق هم د سیاسي آزادۍ نښې بللې او هم یې اقتصادي او ټولنیزې برابرۍ ته د رسېدو لاره بلله. زیاتره په انگلیستان او امریکا کې د ښځو هڅې د رایې د حق د لاسته راوړلو لپاره ښېږنې وې او نظر نورو هېوادو ته یې زیات تاوتریخوالی راوپاراوه. د ښځو د ډلو رهبرانو په دې لاره کې ډېرې ستونزې ولیدلې.

## آیا پوهېږئ چې رایه څه شی ده؟

رایه په لغت کې د نظر او عقیدې په معنا ده، خو په اصطلاح کې د یوه شخص یا سیستم د ټاکلو په معنا ده. په اوسني سیاسي سیستم کې د نوماند هغه چاپ شوې ورقه یا وړاندیز دی چې له رایه ورکوونکو څخه هیله کېږي، هغه قبوله او یا رد کړي. اصلاًغربي نړۍ د ښځو د سیاسي مشارکت مسأله د اسلامي زده کړو څخه تر لاسه کړې ده، ځکه د اسلام په تاریخ کې دا ثابته ده چې ښځو په سیاسي، اقتصادي او ټولنیزو فعالیتونو کې گډون کړی دی، د بېلگې په توگه: حضرت عایشه (ض) د صحابه کرامو د دوران یوه ستره علمي څېره او سیاستمداره ښځه وه، خو په لویدیځ کې د ښځو سیاسي ووټ حق د شلمې پېړۍ په لومړیو کې د اروپا په ډېرو ښارونو کې وپېژندل شو. په انگلیستان کې په ۱۹۸۱ م.کال، په امریکا کې په ۱۹۲۰ م، په ایټالیا کې په ۱۹۲۵م.کال، په فرانسه کې په ۱۹٤٤م.کال کې، د سویس هېواد له ټولو هېوادونو نه زیات ښځو ته د ووټ د حق په ورکولو کې اقدام وکړ او بالاخره په ۱۹۷۱ کال کې د فدرال دولت د ټاکنو په یوه عمومي ووټ اچونه کې ښځو ته د رای ورکولو حق تصویب شو. له دې تاریخ نه وروسته د نړۍ معاصر هېوادونه د هغوی د پرمختگونو او بشري تمدن ته د لاس رسي لا امله د دې حقیقت ته تسلیم شول چې ښځې هم له نارینه وو سره په مساوي ډول له حقونو او شخصیت څخه برخمنې دي، یو جنس له بل جنس نه اوچت نه دی. په شلمه پېړۍ کې څو څو ځله د حکومت رییسان ښځې ټاکل شوې او هغو خپله ټولنه رهبري کوله. له هغوی څخه کولای شو د اندراگاندي او مارگریت تاچر نومونه واخلو. د اروپا په سیاسي سازمانونو کې د ښځو غړیتوب کم و. همدارنگه د ښځو

دندې په ګوندونو کې په فرهنګي او عمومي روابطو کې محدودې وې. د ښځو استازیتوب په پارلمانونو کې هم کم و. په امریکا کې د کارتر د حکومت په مهال په یوولس کسیزه کابینه کې دوه ښځې وې.

د سکاندنیاوي هېوادونه په عمل کې یوازېني هېوادونه دي چې په هغو کې د ښځو رول ډېر اوچت دی. د فنلنډ، سویډن او ناروې په کابینو کې زیاتره غړي ښځې وې.

د اسلام په تاریخ کې هم داسې ښځې وې چې د حکومتونو ریاستونو ته رسېدلې وې او په سیاسي ډګر کې یې ستر رول درلوده. له هغو څخه کولای شو چې د هارون الرشید د مېرمنې زبیدې او ګوهرشادبیګم نومونه یاد کړو.

**فعالیت**: زموږ د هېواد په کابینه کې څو ښځې وزیرانې موجودې دي؟

## د ښځو نه ګډون به د ټولنې لپاره څه پایله ولري؟

په عمومي توګه د ښځو نه ګډون په سیاسي تصمیم نیولو کې ټولنې ته مهمې پایلې لري، لکه:

- ښځې د حقونو او مسؤولیتونو نه محروموي.
- د هغوی نظریات له تګ لارو او قوانینو له جوړولو نه لرې ساتي.
- هغوی په ملي بودجه کې له برخه اخیستنې او د سرچینو له تخصیص څخه، بې برخې کوي.
- ټولنه له پوهې، وړتیا او نظریاتو نه بې برخې کوي.

**فعالیت**: ستاسې په فکر پرته له ذکر شویو مطالبو نه د ښځو نه ګډون به نورې کومې پایلې ولري؟

## د ښځو ګډون زموږ په هېواد کې

د ښځو ګډون زموږ د هېواد په سیاسي بهیر کې له ډېره وخته راهیسې پیل شوی دی، ښځو د امان الله خان د سلطنت په وخت کې په سیاسي فعالیت کې ونډه واخیسته او د محمد ظاهر شاه د پاچاهۍ او شاه محمود خان د صدارت په وخت کې، یو شمېر ښځو ملي شورا ته لار پیدا کړه. د محمد ظاهر شاه له وخته وروسته د ښځو رول زیات شو او له هغه نه په را وروسته وختونو کې داسې ښځې موجودې وې چې د سفارت او وزارت پوستونو ته رسېدلې وې، خو د بن د پرېکړه لیک نه وروسته د ښځو لپاره په ټولو برخو کې د ګډون کولو لاره هواره شوه. ښځو د هېواد د اساسي قانون پر بنسټ د نوماندۍ او رایې ورکولو حقوق تر لاسه کړل. پس له هغې ښځو وکړای شول چې د هېواد په سیاسي فعالیتونو کې فعاله ونډه واخلي. همدا اوس زموږ په هېواد کې ښځې فعال رول لري او په ټولو چارو کې برخه اخلي. د دوی له منځ څخه د هېواد په سیاسي بهیر کې یو شمېر یې د وزیرانو او وکیلانو په حیث مهم رول لوبوي.



## د لوست تکرار

- ......................................................................
- ......................................................................
- ......................................................................
- ......................................................................
- ......................................................................



## پوښتنې

۱- د اسلام لاسته راوړنې د ښځو لپاره څه شی دي؟
۲- په اروپاکې د لومړي ځل لپاره ښځې څه وخت د خپلو حقونو د ترلاسه کولو په لټه کې شوې؟
۳- رایه او رایه اچونه څه شی دي؟
٤- آیا د اسلام په تاریخ کې ښځو سیاسي نقش درلود؟ د مطلب د اثبات لپاره د دوو دولتونو نومونه واخلئ.
٥- همدا اوس د هېواد په سیاسي بهیر کې د ښځوګډون څه رنګه وینئ.



## کورنۍ دنده

په فردي او ټولنیز ژوند کې د ښځې د رول په اړه څو کرښې ولیکئ.

## د څېرکي لنډیز

• **مشارکت په اصطلاح کې د تصمیم نیولو نه د مخه د یو څه په هکله مشوره کولو ته ویل کېږي. په داسې ډول چې د شخص څرګندونه او د مراقبت او څارنې عملي کولو امکان په دې تصمیم نیولو کې موجود او د هغه د پایلو بدلون امکان ولري.**
• **ټاکل د خلکو مشروع حق دی. خلک په خپله خوښه خپل مشر ټاکي. فشار، جبر او زور نشي کولی چې د خلکو کلکه اراده له منځه یوسي. ټاکنې په هېوادنیو چارو کې د ګډون او برخې اخیستنې او د دوی د سیاسي راتلونکي په ټاکلو کې یوه د ډېرو مهمو وسایلو څخه شمېرل کېږي.**
• **ښې او په زړه پورې ټاکنې هغه وخت تر سره کېږي چې خلک د خپلې خوښې استازي په خپله خوښه وټاکي. د مقابل لوري نظریو ته غوږ ونیسي او ویې زغمي، یو له بله سره د دښمنۍ احساس و نه لري او یو له بله سره ښه راشه درشه وکړي.**
• **ښځې د ټولنې د نیمايي برخې په توګه کله چې د ټولنې په سیاسي ډګر کې فعال رول ولوبوي، په ټولنیز پرمختګ کې مهم رول لري. که چېرې د دوی د ګډون کولو لپاره مناسب شرایط برابر نه شي، ټولنه به د خپل پرمختګ نیمايي سرچینې له لاسه ورکړي.**
• **د اسلام دین په خپرېدو سره، د قرآنکریم د لارښوونو او نبوي سنتو په رڼا کې ښځې د با عزته او باحرمته مقام څخه برخمنې شوې او د ژوندانه په ټولو برخو کې ورته حقونه ورکړل شول او په سیاست، اقتصاد، ښوونه او روزنه کې یې له نارینه و سره اوږه په اوږه برخه واخیسته.**

# نړیوالې اړیکې

**په دې څپرکي کې لاندې لو ستونه لولئ:**

- **د نړیوالو اړیکو وسیلې**
- **اقتصادي اړیکې**
- **سیاسي اړیکې**
- **فرهنګي اړیکې**
- **نړیوال کېدل**

# د څپرکي موخې

د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنيزو او مهارتي موخوته رسيږئ:

- د نړيوالو اړيکو په مفهوم به پوه شئ.
- د نړيوالو اړيکو په اړتيا او اهميت به پوه شئ.
- د نړيوالو سياسي اړيکو په اصولو باندې به پوه شئ.
- د نړيوالو اقتصادي اړيکو په اصولو باندې به پوه شئ.
- د نړيوالو فرهنگي اړيکو اصول به وپيژنئ.
- نړيوال کېدل به تعريف کړای شئ.
- د نړيوالو اړيکو مفهوم به تعريف کړای شئ.
- د نړيوالو اړيکو اړتيا او مفهوم به تشريح کړای شئ.
- د نړيوالو سياسي اړيکو څخه ځينې مهم به يې توضيح کړای شئ.
- د فرهنگي اړيکو اهميت او زيان به توضيح کړای شئ.
- نړيوال کېدل به تحليل کړای شئ.

# د نړيوالو اړيکو وسيلې

په تېرو درسونو کې مو ولوستل چې ښځې د ټولنې په پرمختګ کې د ټولنې د وجود نيمايي برخه جوړوي.په حکومت او تصميم نيولو کې د ښځو سياسي ګډون کېدای شي چې د هغوی فعاليت د نورو ساحو لپاره يو ملاتړ وي. نن ورځ تاسې په سياسي، اقتصادي او اجتماعي برخو کې د ښځو د کړنو شاهدان ياست. په دې لوست کې تاسې د نړيوالو اړيکو له وسيلو سره بلدېږئ.

## خبرې پرې وکړئ

که د ټولنو پخواني تاريخ ته وګورو، په پخوانيو زمانو کې هم د ټولنو ترمنځ اړيکې موجودې وې، خو، نه د نن ورځې په شان. په دې هکله پوښتنه پيدا کېږي چې:

نړيوالې اړيکې څنګه را پيدا شوې؟

د لرغوني يونان د سياسي تاريخ په مطالعې سره له قراردادونو او اتحاديو سره مخامخ کېږو چې د يو ډول نړيوال ساده وېش د شتون او لرغوني زمانې د سياسي واحدونو تر منځ د منظمې همکارۍ دليل کېدلی شي. پس له هغې په لومړنيو پېړيو کې نړيوالې اړيکې د هغه وخت د مطرح شوو څلورو امپراتوريو يعنې روم، فارس، هند او چين ترمنځ د سوداګريزې راکړې ورکړې او کله به هم د سولې او جګړو پر اړيکو باندې ولاړې وې. د اتمې زېږديزې پېړۍ نه وروسته کله چې هغه وخت د نړۍ پرمخ اسلامي لوی هېواد را څرګند شو، د نړيوالو اړيکو د تاريخ پاڼه بدله شوه او د هېوادونو ترمنځ په علايقو کې پر سوداګرۍ او ځمکنيو شخړو سربېره د ارزښتونو او اخلاقو پر بنسټ يو نوی ور پرانيستل شو. مسلمانانو د نړيوالو سره خپلې اړيکې د برابرۍ او ورورولۍ او مرييتوب د جغ څخه د ملتونو آزادولو په بنسټ، ټينګې کړې. لومړنی سړی چې د نړيوالو اړيکو په هکله يې يو غټ کتاب وليکه او تر اوسه پورې د څېړونکو په لاس کې دی امام محمد بن حسن شيباني د امام ابوحنيفه (رحمت الله عليه) شاګرد و چې دوه عنوانه کتابونه يې د کتاب السير الصغير او کتاب السير الکبير په نومونو ليکلي دي، خو د نړيوالو اړيکو اساسي ستنې د هېوادونو د نوي سيستم تر پيدا کېدو وروسته د ننيو دولتونو په واسطه په اوولسمه پېړۍ کې د ۱٦٤۸ م د (وستفالي) قرارداد نه وروسته کېښودل شوې. چې د فرانسې انقلاب ۱۷۸۹ م. او د کنګرې ۱۸۱۵ م. سره يې وده وکړه. څکه د نن ورځې د نړيوالو اړيکو نظم چې بنسټ يې ايښودل شوی دی، په دوو اساسي اصولو د مختلفو او خپلواکو هېوادونو شتون ، په نړيواله صحنه کې د هېوادونو د برابرۍ پر اصل منلو باندې ولاړ دی. چې د وستفالي له قرارداد او د فرانسې له انقلاب نه وروسته د دولتونو د منلو وړ وګرځېد.

له دويمې نړيوالې جګړې نه وروسته، په نړيوالو اړيکو کې د اغېزمنو پديدو او عواملو په اړه تحقيق او همدارنګه علمي مطالعې په نړيوالو اړيکو او بهرني سياست کې پيل او د نن ورځې په شان يې

دود پیدا کړ.

نړیوالې اړیکې په عامه معنا د اړیکو له هغو ټولو ډولونو نه عبارت دي چې د نړۍ په کچه یې نړیوال دولتونه، نړیوال سازمانونه او نور لوبغاړي یو له بل سره لري.

اوس مهال (۱۹۳) هېوادونه وجود لري چې یو له بل سره او همدارنګه د نړیوالو سازمانونو او نورو ډول، ډول لوبغاړو سره یو اړخیزې او څو اړخیزې سیاسي، اقتصادي، فرهنګي او سوداګریزې اړیکې لري، د بېلګې په توګه: زموږ هېواد افغانستان د شمال له خوا د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان له جمهوریتونو سره، د جنوب او جنوب شرق له خوا د پاکستان له اسلامي جمهوریت سره هم سرحده او سیاسي، اقتصادي، ټولنیز او فرهنګي اړیکې لري. همدارنګه په لرې واټن کې افغانستان له افریقا، امریکا او استرالیا له لویو وچو سره اړیکې لري. د هېوادونو تر منځ اړیکې او د هغوی ثبات د هېوادونو ترمنځ نورې اړیکې پیدا کوي چې د نړیوالو اړیکو په نامه یادېږي. دا اړیکې له دې امله نړیوالې بولي چې د دې اړیکو تشکیلوونکي ټولنې او هېوادونه دي.

**پوهېږئ د دویمې نړیوالې جګړې تر پایه پورې نړیوالې اړیکې څنګه څېړل کېدلې؟**

له دویمې نړیوالې جګړې نه مخکې ۱۹۳۹م. کال د نړیوالو اړیکو مطالعات، د سیاسي تفکراتو په چوکاټ او همدارنګه د نړیوالو پېښو تحلیل او تجزیه د ورځپاڼو او تاریخ لیکنې په اساس څېړل کېدل؛ معمولاً یو منظم بهیر یې نه درلود. هر یوه پوه د خپلو څېړنیزو او ذهني شرایطو په بنسټ د نړیوال سیاست د موضوع په باره کې خپلې څېړنې او تحقیقات سرته رسول. د پاملرنې وړ ټکی دا دی چې څېړونکو د هغو پېښو او پر مختګونو تر اغېز لاندې چې د نړیوالو اړیکو په ډګر کې پېښېدلې په اغېزناکه توګه به یې خپل نظر څرګنداوه. په بل عبارت، د نړیوالو اړیکو د څېړونکو لیدلوری او تحلیل به له سیاسي پېښو نه اغېزمن وه.

له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته د نړیوالو اړیکو څېړونکي دې نتیجې ته ورسېدل چې د یولړ ټینګو او تکراري چارو (رفتارونو) بېلګې لاس ته راوړي چې د عمومي قوانینو او اصولو په رڼا کې وکولای شي د سیاسي واحدونو کړه وړه بیان او وړاندوینه یې وکړي. په دې ډول په نړیوالو اړیکو کې (د علمي څېړنو اساس) رونق پیدا کړ او د نړیوالو اړیکو څېړونکو کوښښ کاوه چې په خپلو څېړنو کې له علمي طریقو څخه کار واخلي.

په دې ډول کولای شو ووایو چې نړیوالې اړیکې د انساني علومو له جملې څخه دي چې له پخوا زمانو څخه یې له نورو رشتو نه توپیر پیدا کړی او خپلواکه بڼه لري. تر دې حده پورې چې د دې رشتې د څېړنې لپاره په ټوله نړۍ کې څېړنیزې او علمي برخې او مرکزونه منځ ته راغلي دي، خو دا په دې معنا نه ده چې دا رشته ټولو علومو ته اړتیا نه لري، برعکس د نړیوالو اړیکو او سیاست په اړه څېړنې

او مطالعه کېدای شي، د نورو ټولنیزو علومو د رشتو نه له ګټې اخېستلو پرته ناشونې وي.

## د نړیوالو اړیکو اصول څه شی دي؟

د نړیوالو اړیکو اصول کولی شو داسې تعریف کړو: د ټولنیزو علومو یوه رشته ده چې د نړیوالو لوبغاړو د پېژندلو چارې سرته رسوي.

یا د نړیوالو اړیکو اصول هغه علمي رشته ده چې د ټولنې او د نړیوالو مسایلو پېژندل ور د غاړې دي.

## د اوسنیو نړیوالو اړیکو مسایل کوم موضوعات تشکیلوي؟

نن ورځ په نړیوالو اړیکو کې بې شمېره مسایل موجود دي چې بېشکه د نړۍ راتلونکی د دې مسایلو په صحیح حل پورې اړه لري چې خورا مهم یې عبارت دي له: دجګړې په ځینو سیمو کې د آرامۍ راوستل، په عمومي توګه د نړیوالې سولې مسئله، د ځواکمنو هېوادونو تر منځ اړیکې، د کړکېچ رامنځ ته کېدل، د دریمې نړۍ استعمارول، خپلواکۍ غوښتونکي خوځښتونه او انقلابونه، سیمه ییز اختلافونه، سیاسي سیالۍ، هسته یي وسلې، په فضا کې نړیوالې اړیکې او داسې نور.

**فعالیت**: کومې موضوع ګانې له نړیوالو اړیکو سره تړاو لري؟ د ډلې له غړیو سره پرې خبرې وکړئ.

## نړیوال لوبغاړي

په عامې معنا سره د لوبغاړي اصطلاح هغو ټولو مقاماتو، سازمانونو ډلو، حتي اشخاصو ته کارولی شو چې د یوه عمل سرته رسوونکي وي، یو رول یا نقش یې لوبولی وي. د نړیوالو اړیکو په تړاو کې کولای شو هغه ډله د لوبغاړو په توګه معرفي کړو چې کړه یې د هېواد له سرحدونو څخه آخوا غځېدلې وي او په نړیوالو چارو کې فعالانه ګډون ولري. پر دې بنسټ کولای شو د نړیوالو اړیکو ټول لوبغاړي د دولتونو، نړیوالو سازمانونو او د ټولو نورو لوبغاړو تر سرلیک لاندې مطالعه کړو.

## دولت

دولت د نړیوالې ټولنې او نړیوالو حقونو اصلي واحد دی. د نړیوالو سیاسي، حقوقي، اقتصادي، فرهنګي، نظامي او داسې نورو واحدونو ترمنځ د اړیکو مجموعه ده. د نړیوالو اړیکو په مطالعه او څېړنه کې لومړنی ګام د دولتونو ترمنځ د اړیکو څرنګوالی دی. د نړیوالو سازمانونو، څو ملیتي شرکتونو او نورو لوبغاړو له منځته راتلو نه مخکې په نړیواله کچه یوازیني لوبغاړی، دولت و. نن ورځ د نورو لوبغاړو له شتون سره سره بیا هم د نړیوالو اړیکو اساسي رکن دولتونه دي چې د سیاسي اړیکو په لوست کې به نور معلومات پیدا کړئ.

**فعالیت**: ولې دولت د نړیوالو اړیکو په اصولو کې مهم دی؟ د ډلې له غړو سره په دې اړه خبرې وکړئ.

## د غیر دولتي لوبغاړو په اړه په څه پوهېږئ؟

له دولتونو نه سربېره نور لوبغاړي هم شتون لري چې د بهرنیو اړیکو په ډګر کې ښه رول لوبوي. په داسې ډول چې یو په دریمه نړیوال فعالیتونه یې د دولت سره څنګ په څنګ مطرح کړي دي. په اوسنیو شرایطو کې د لوبغاړو رول او د خپلواکی غوښتونکو خوځښتونو، انقلابي ګروپونو او سازمانونو، نړیوالې اتحادیې څو ملیتي شرکتونه او په دې ډول نور اهمیت لري چې حتی په ځینو چارو کې د دې غیر دولتي لوبغاړو اغېزه په نړیوالو اړیکو کې د رسمي ( حکومتي) لوبغاړو له رول نه زیاته وي. په داسې حال کې چې د دولت کړه وړه کولای شو، د حکومتي جوړښت د نمونې په توګه او همدارنګه د ملي ګټو او حقوقي مسئلو په چوکاټ کې تجزیه او تحلیل کړو، خو دا ډول مشخص چوکاټ نه شو کولای، غیر حکومتي بازیګرانو ته په نظر کې ونیسو.



**د لوست تکرار**

- ..........
- ..........
- ..........
- ..........
- ..........



**پوښتنې**

۱- نړیوالې اړیکې تعریف کړئ.

۲- د نړیوالو اړیکو اساسي بنسټونه څنګه ایښودل شوي؟ معلومات ورکړئ.

۳- نن ورځ کوم موضوعات د نړیوالو اړیکو له بحث سره تړاو لري؟ فهرست یې کړئ.

٤- نړیوالې اړیکې پخوا وختونو کې څنګه څېړل کېدې؟

٥- د نړیوال لوبغاړي اصطلاح څه معنا لري؟



**کورنۍ دنده**

د پنځو نړیوالو سازمانونو نومونه ولیکئ.

# اقتصادي اړيکې

په تېر لوست کې مو زده کړل چې د ټولنو ترمنځ د اړيکو شتون او د هغه دوام په تدريج سره د ټولنو ترمنځ د پايدارو اړيکو شبکه پيدا کوي چې د نړيوالو اړيکو په نامه يادېږي اوس به په اقتصادي اړيکو پوه شئ.

## خبرې پرې وکړئ

انسانان د هغو ډول ډول اړتياوو په خاطرچې لري يې يو له بل سره د اړيکو لرلو ته اړتيا لري. اقتصادي اړيکه هم د همدې اړتياوو په اساس شکل نيسي. دا اړيکې کله ساده، د مبادلې تر حده او کله په پېچلې توګه په نړيواله کچه صورت نيسي په دې ځای کې پوښتنه پيدا کېږي چې:

## اقتصادي فعاليت څه شی دی؟



د ژوندانه د اړيتاوو وړ شيانو توليد د نسل د توليد تر څنګه او له هغه وړاندې د ټولنيز نظام د دوام لپاره ضروري دی. له همدې امله په هر نظام کې ځينې سرته رسيدلې فعاليتونه د ژوند د وسايلو د لاس ته راوړلو لپاره ځانګړې شوي چې هغه د اقتصادي فعاليت په نوم يادېږي. دا فعاليتونه په دوو برخو کې سرته رسېږي، د بېلګې په توګه:

- په کرنيزو ځمکو کې د بزګرانو کوښښ او هڅه.
- په فابريکو کې د انجنيرانو او کارګرانو فعاليت. دا د اقتصادي فعاليت بېلګې دي چې د هغه په ترځ کې توکي توليدېږي.
- په ټولګې کې د ښوونکو فعاليت.
- په دولتي ادارو کې د کارمندانو فعاليت.

دا د اقتصادي فعاليت هغه بېلګې دي چې د هغه په ترځ کې يو شی، د خدمتونو په نوم عرضه کېږي.

## اقتصادي اړيکې

په ټولنيز چاپېريال کې هغه اقتصادي فعاليت چې له نورو سره په اړيکو کې سرته رسېږي د فرد او نورو تر منځ د اړيکو دنيولو لامل ګرځي، اقتصادي اړيکې نومېږي،
د بېلګې په توګه:



- د کارګرانو اړیکه یو له بل سره د کار په چاپیریال کې.
- د کارګرانو اړیکه له انجینرانو سره.
- د کارګرانو اړیکه د فابریکې له څښتن سره.
- دا په فابریکه کې د اقتصادي اړیکو بېلګې دي.

**فعالیت**: د خپلې ډلې په مشوره د اقتصادي اړیکو درې بېلګې ولیکئ.

**اقتصادي نظام**:د هغو اړیکو مجموعه چې د توکو د تولید، مبادلې او خدمت په اړه د هغو ټاکل شویو قواعدو له مخې چې د ټولنې له خوا شکل نیسي، اقتصادي نظام منځ ته راوړي.

## د سیاسي اړیکو اغېزه په اقتصادي اړیکو باندې

تجارت زیاتره د سوداګرو او تجارتي شرکتونو او دولتونو ترمنځ د هغو قوانینو او مقرراتو په اساس صورت نیسي چې د دولتونو له خوا وضع شوي دي او یا د هغو قراردادونو په اساس وي چې د دولتونو ترمنځ تړل شوي وي. دولتونه هغه توکي او مواد چې صادرول او واردول یې منع نه وي، د هغو اندازه د صدور او ورود طریقه معلوموي او تجارت د دې قوانینو او مقرراتو په حدودو کې مجاز ګڼل کېږي. د دې قوانینو او مقرراتو وضع کېدل د هغه هېواد د بهرني سیاست تابع دي. دولتونه هڅه کوي، سوداګریز تړونونه په داسې ډول تنظیم کړي چې هغوی ته ډېره ګټه ور په برخه او د بهرني سیاست سره یې موافق وي. له دې امله دولتونه په خپل هېواد کې د ګمرک پرانیستلو ته اقدام کوي چې د غیر قانوني توکو او موادو د صدور او ورود نه مخنیوی وشي.

## آیا پوهېږئ قاچاقي مواد څه شی دي؟

هغه توکي چې د مقرراتو له چوکاټ نه بهر وارد او یا صادرشي، قاچاقي مواد ګڼل کېږي او عامل یې مجرم ګڼل کېږي. له نورو ټولنو سره اقتصادي اړیکې د ټولنو په داخلي جوړښت اغېزه لري او ممکنه ده د ټولنیز نظام تعادل له ستونزو سره مخامخ کړي. له همدې امله د ټولنو تر منځه د اقتصادي اړیکو تنظیم او سمون صورت نیسي، د بېلګې په توګه: کولای شو په ځینو دورو کې د ځینو خوراکي توکو د صدور اجازه او په ځینې دورو کې د دې موادو ممنوعیت په ګوته کړو. خوراکي توکي د بهرنیو پیسو د لاس ته راوړلو په موخه د بهرنیو توکو پېرودلو لپاره صادرېږي، خو کله چې د موادو صدور په داخل کې د دې موادو د کمښت او د بیو د لوړوالي سبب شي، دولت د تعادل د ساتلو لپاره په ټولنه کې د هغو صدور منع کوي، نو ویلی شو چې د ټولنو ترمنځ اقتصادي اړیکې لومړی د هغوی له بهرني سیاست څخه اغېزمنې کېږي.

## د ټولنو تر منځ اقتصادي اړيکې او د هغو د پايلو په اړه څه پوهېږئ؟

اقتصادي اړيکې، لکه د خلکو او ټولنو د اړيکو په څېر يوازې د دولت او خلکو د غوښتنو تابع نه دي، بلکې وروسته له څرګندېدو له ځانه پايلې لري، د بېلګې په توګه: کله چې يو شخص کرايي کور ته اړتيا ولري، د کور موندلو لپاره د معاملاتو لارښود دفتر ته مراجعه کوي، د دې شخص غوښتنه داده چې د کور کرايه ارزانه وي، خو د هغه مراجعه د يو تقاضا کوونکي په توګه د تقاضا د اندازې د زياتوالي لامل او په غير مستقيمه توګه د بيې د لوړېدو سبب کېږي دا داسې پايله ده چې د کرايه نيوونکي غوښتنه نه ده، خو دا پايله د ده له کړنې حاصلېږي. د ټولنو تر منځ را پيدا شوي اقتصادي اړيکې داسې پايلې له ځانه سره لري چې شايد د هغو خوښه نه وي او په پايله کې د دوی پر ضرر تمام شي. د دې برخې اقتصادي اړيکو سره د آشنايي لپاره لازمه ده چې د څو مفهومونو توضيح ته ادامه ورکړو.

## ما زاد (اضافه شوی ارزښت) څه شی دی؟

يوه کورنۍ په نظر کې ونيسئ چې غړي يې په يوه کارخانه کې د قالينو په اوبدلو بوخت دي. د کورنۍ مشر د يوې غالۍ د اوبدلو لپاره د اړتيا وړ مواد چمتو کوي. وروسته له څلورو مياشتو اوبدل شوې غالۍ په بازار کې د خرڅلاو لپاره تيارېږي. حتماً د غالۍ د لومړۍ بيې او د اوسنۍ بيې تر منځ توپير موجود دی. د کور سر پرست د هغې محاسبې په بنسټ چې خپل ځان سره يې کوي، د کورنۍ د غړيو لګښت چې په توليد بوخت وو، د موادو بيه د غالۍ د پلورلو له بيې (قيمت) څخه کموی او نورې پيسې چې د غالۍ د پلورلو له امله (له وجهې) لاس ته راغلې دي ګټه ګڼل کېږي. هغه مقدار پيسې چې د غالۍ د پلورلو له لارې لاسته راغلې دي د کورنۍ د غړو د کار پايله ده، خو د هغوی د کار يوه برخه ده چې د کار د ځواک د بيا توليد ( خواړه، پوښاک او د کورنۍ د اړيتا وړ توکو او شيانو) لپاره ترې کار نه دی اخيستل شوی. دې برخې عايد ته چې د کار د ځواک د بيا توليد لپاره نه لګول کېږي، مازاد ( اضافه شوی ارزښت) ويل کېږي.

## د مازاد انتقال او نا برابره مبادله

اوس تاسې داسې اټکل وکړئ چې هماغه غالۍ اوبدونکې کورنۍ غالۍ له اوبدلو نه وروسته د پلورلو لپاره بازار ته راوړي په داسې حال کې چې بازار کساد[1] لري، پېرېدونکي(خريداران) هغه په کمه بيه اخلي. نوموړې کورنۍ پيسو ته اړتيا او خپلو اړتياوو د پوره کولو لپاره هغه خرڅوي، وروسته له خرڅېدو څخه وضعيت بدلون کوي او پېرېدونکي هغه غالۍ په جګه بيه له هغه بيې نه چې اخيستې يې ده، خرڅوي. د خرڅوونکي د کار د ګټې يوه برخه، بله برخه په ارزانه بيه اخيستل، په قيمته بيه خرڅولو پورې اړه پيدا کوي، په دې برخه کې هغه ګټه چې بايد توليد کوونکي ته ورکړشي، د دې فرد او مؤسسې په نصيب کېږي. دا هغه ګټه ده چې د بيو د بدلون او د بازار د بدلون

---

(۱) کساد: بې رواجه کېدل، يا د يوه شي له رواجه لوېدل او هغه ته د خريدار نه پيدا کېدل.

په پايله کې لاس ته راغله، په دې جريان کې د مازاد يوه برخه، له توليد کوونکو څخه هغو خلکو ته چې په پلورلو او اخيستلو بوخت دي، انتقال پيدا کوي. دا کار د ټولو توکو په اړه کېدای شي، صدق پيدا کړي. د دې لپاره چې د راکړې ورکړې اړيکه د مازاد انتقال له پلورونکي څخه توليد کوونکي ته لاړ نه شي، هغه ته ( نابرابره مبادله) وايي. که چېرته په راکړه ورکړه کې د مازاد يوه برخه توليد کوونکي پلورونکي(خرڅوونکي) ته د بيو د توپير په دليل پېربېدونکي ته منتقل شي، دا اړيکه د نابرابرې مبادلې په نامه يادېږي. هغه وضعيت چې د هغه په ترڅ کې د خلکو شرکتونو ته زياته ګټه رسيږي، امکان لري ټولو هغو کسانو ته چې د پلورلو او پېرېدلو په کار بوخت دي، دا وضعيت مخ ته راشي. معمولاً دې ډول وضعې ته د ( ښکار) نوم ورکوي .

**فعاليت**: له خپلې ډلې سره د نابرابرې مبادلې په اړه بحث وکړئ. د اقتصادي مبادلې څو بېلګې وليکئ.

که چېرته نابرابره مبادله د يوې اوږدې مودې لپاره د دوو جانبو ترمنځ دوام پيدا کړي، په تدريج سره د مبادلې يو طرف شتمن او بل يې نيستمن کېږي.

د ټولنو په منځ کې د نابرابرې مبادلې په اړه کولای شو، د ايران په وړاندې د انګليستان د دولت معاملې په ۱۳۲۹ هـ.ش. کې د نفتو له ملي کېدو نه يادونه وکړو. د انګليستان د دولت اقدامونه د ايران په وړاندې چې د نفتي قراردادونو د ساتنې په انګېزه يې صورت نيوه د نابرابرې مبادلې له ساتنې نه د ګټې اخيستنې يوه بېلګه ده. د کيوبا او ايران اقتصادي تحريم د سترو ځواکونو له خوا د نابرابرې مبادلې د ساتلو هڅه ده.



**د لوست تکرار**

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................



**پوښتنې**

۱- اقتصادي فعاليت څه شی دی؟

۲- اقتصادي اړيکې څه شی دي؟

۳- اقتصادي نظام تعريف کړئ.

٤- د اقتصادي اړيکو په اړه لنډ معلومات ورکړئ.

٥- د مازاد د انتقال او مبادلې په اړه څو کرښې وليکئ.



**کورنۍ دنده**

د مازاد (اضافه شوي ارزښت) په اړه څو کرښې وليکئ.

# سیاسي اړیکې

په تېر لوست کې مو د اقتصادي اړیکو په اړه معلومات ترلاسه کړل، اوس په دې لوست کې د دولتونو ترمنځ په سیاسي اړیکو پوهېږئ.

## خبرې پرې وکړئ



د نړیوالو اړیکو په څېړنه او مطالعه کې اصلي عنصر دولت دی. د دولت د تعریف په بنا یو شمېر خلک چې په یوه ټاکلي جغرافیایي سیمه کې په دایمي توګه استوګن وي او د داسې یو قوي دولت لرونکی وي چې د قوانینو په وضع او اجرا اقدام کوي او له حاکمیت څخه برخمن وي د هغه عالي ځواک هغوی له داخلي او بهرني تېري نه ساتي. دلته یوه پوښتنه پیدا کېږي چې بهرنی سیاست څه شی دی؟

**بهرنی سیاست**: بهرنی سیاست د یوه دولت له هغه سیاست نه عبارت دی چې له نورو هېوادونو سره یې په متقابل عمل کې لري. په بل عبارت، بهرنی سیاست د یوه هېواد د داخلي سیاست، په ځانګړې توګه د اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي نظام تابع وي. بهرنی سیاست د یو لړ موخو او ملي ګټو اجرا کوونکی دی چې په نړیوال ډګر کې د دولتونو له خوا سرته رسېږي.

## په نړیوالو اړیکو کې د دولتونو موخې

په نړیوالو اړیکو کې دولت د هرې ټولنې د سیاسي نظام اصلي برخه شمېرل شوې ده.
د ټولنې استازی او د نورو ټولنو په وړاندې د هغې د منافعو ساتونکی دی، نو په دې اساس په نړیوالو اړیکو کې د ټولنو موخې هم د دولت له خوا تعقیبېږي.

## لومړۍ درجه اساسي موخې

**د خاورې د تمامیت ساتنه**: په نړیوالو اړیکو کې د ټولنې حفاظت او ساتنه مختلفې معناوې لري. له ټولنې نه د ساتنې ابتدایي شکل د نورو هېوادو په وړاندې د هېواد د سرحداتو ساتنه ده. دولتونه اجازه نه ورکوي چې نور هېوادونه د هغوی په خاوره او یا سرحد باندې تېری وکړي. دا د ټولنې د ساتنې هغه شکل دی چې د خاورې تمامیت ورته ویل کېږي. له سرحدونو نه ساتنه د هر

دولت د بحرونو او هوايي حريم څخه عبارت ده. له همدې امله له اجازې پرته د يوه هېواد د الوتکو ننوتل، د بل هېواد حريم ته د هغه هېواد په هوايي حريم، هېواد او سرحدونو باندې تېرى ګڼل کېږي چې د هغه دولت له غبرګون سره مخامخ کېږي او حتى کله ناکله د جګړې لامل هم ګرځي.

## ملي ګټې National Interests

د ټولنې ساتنه د سرحدونو او ځمکې په ساتنه پورې نه محدودېږي، بلکې ډېر پراخ اړخونه لري چې هغه بايد وپېژنو. په دې برخه کې د حياتي ګټو او ملي ګټو له مفهومونو څخه استفاده شوې ده. هرې ټولنې هر هغه څه چې د هغې د دوام او ساتنې لپاره اړين دي، مشخص او نښه کړي دي او هغه يې د ملي ګټو- حياتي ګټو او ملي امنيت په نامه ياد کړي دي. هر کله چې دغه ګټې او امنيت له خطر سره مخامخ شي، د دولت دنده ده چې له هغو څخه دفاع وکړي.

**فعاليت**: د خپلې ډلې سره له مشورې نه وروسته د حياتي ګټو يو بل مثال بيان کړئ.

**دويمه درجه موخې**: ځينې دويمه درجه موخې په لاندې ډول بيانېږي.

## د وجهې (آبرو، عزت او اعتبار) تر لاسه کول څه شى دي؟

د دويمې درجې موخو له ډولونو نه يو ډول يې په سياسي اړيکو کې د پرستيژاو وجهې د زياتوالي ترلاسه کول دي. ټول دولتونه هڅه کوي چې په نړيوالو اړيکو کې درناوى او مقام لاس ته راوړي. دا مامول (ارزو او هيله)په بېلا بېلو ډولونو صورت نيسي، په هر دولت کې د نورو هېوادونو د لوړپوړو ( ډيپلوماتيکو) مقاماتو په وړاندې د تشريفاتو اجرا کول، د دولتونو تر منځ د درناوي او منزلت د شتون نښې ښکاره کوي.

**فعاليت**: د تلويزيوني رپوټونو په پام کې نيولو سره نورو هېوادونه د هېواد د ولسمشر د سفر په وړاندې د هغو هېوادونو رسمي مراسم پرتله او د افغانستان اهميت په مختلفو ټولنو کې ارزيابي کړئ.

پراخ سياسي او پرتمين مراسم د هغه اهميت ښکاره کوونکي دي چې کوربه هېواد يې له مېلمه هېواد سره د اړيکو په وړاندې لري. د نظامي ځواک زياتوالى او د هغه ښودل د ملي وجهې د زياتوالي او لاس ته راوړلو لپاره د هڅې يوه بله نمونه شمېرل کېږي.

**د عقيدو رواجول ( ترويج)**: د ځانګړو ارزښتونو او عقيدو رواجول له دويمې درجې موخو څخه شمېرل کېږي چې دولتونه د هغو د لاس ته راوړلو لپاره هڅه کوي. ټول هېوادونه نور دولتونه خپلې عقيدې او باورونو ته رابولي. د بهر نيو راډيوګانو او تلويزيون چمتو شوې خپرونې او د هغه خپرول د دې غوښتنو، نښې او نمونې دي. هر دولت هڅه کوي چې د پروګرامونو له لارې د نورو هېوادونو د

خلکو په افکارو او عقیدو اغېزه وکړي، هغه د خپلو موخو په بنسټ هدایت او رهنمایي کړي. ځکه د رسنیو له لارې د خپروشو نظرونو سره د نورو ټولنو د خلکو د نظرونو یو کېدل په نړیوالو اړیکو کې د یوه دولت سره موخوته په رسیدلو کې مرسته کوي.

## پراختیا غوښتنه ( توسعه طلبي)

پراختیا غوښتنه یوه له هغو موخو څخه ده چې په ځینو ټولنو کې د اهمیت له پلوه دویمه درجه اهمیت لري. ځینو هېوادونو د نورو هېوادونو د ځمکو ولکه کېدو ته سترګي نیولې وي او په نورو هېوادو کې په پراختیا غوښتنې لاس پورې کوي. په دې ډول دولتونو کې پراختیا غوښتنه دویمه درجه موخه بلل کېږي، لکه: په افغانستان باندې د پخواني شوروي اتحاد پوځي یرغل، د کویټ په خاوره د عراق پوځي یرغل او همدارنګه د یهودیانو له خوا، د خپلې ځمکې د پراختیا اوګاونډیو ځمکو غصبول او په ولکه کې راوستل د پراختیا غوښتني نمونې دي.

## بحث وکړئ

په نړیوالو اړیکو کې موخو ته د لاس رسي وسایل کوم دي؟

دولتونه په نړیوالو اړیکو کې د خپل بهرني سیاست د مخته وړلو لپاره له ډول ډول وسایلو او وسېلو څخه کار اخلي. دولتونه کله ګواښ کوي، کله هم د نورو هېوادو او دولتونو په ضد په تبلیغاتو لاس پورې کوي. ځینې وختونه د (بشر د حقونو) له وسیلې څخه کار اخلي. هغه لارې او وسیلې چې دولتونه یې خپلو موخو ته د رسېدو لپاره کاروي له اقتصادي، نظامي تبلیغاتي، فرهنګي او دیپلوماسۍ څخه عبارت دي.

## اقتصاد څه شی دی او په نړیوالو اړیکو کې څه اهمیت لري؟

نن ورځ اقتصاد د هېوادونو د سیاست ډېره مهمه وسیله شمېرل کېږي. هېوادونه کولای شي د تکنالوژۍ او د توکو د مبادلې په بهیر کې ستونزې رامنځ ته کړي او د نورو دولتونو اقتصادي بهیر ګډوډ کړي. په اقتصاد کې ګډوډي دولتونه له ستونزو سره مخامخ کوي او دولتونه له دې ستونزو څخه د خلاصون لپاره اړ دي چې د مقابل لوري د دولت غوښتنې ومني.

**فعالیت**: ولې اقتصادي وسېلو په پخوا وختونو کې دومره اهمیت نه درلود؟ لامل یې ولیکئ.

## تبلیغات: PROPAGANDA

د سیاسي، فلسفي او مذهبي افکاروتوضیح، بیان رواجول او داسې نور د خلکو په منځ کې د جلسو، کتابونو، د علمي او تحقیقي رسالو او د هر ډول وسایلونه په ګټه اخیستلو سره د نورو د عقایدو او افکارو تر اغېزې لاندې راوستلو ته تبلیغ وایي. هېوادونه د خپل بهرني سیاست په ساحه

کې د خپلو موخو د پلې کولو لپاره هڅه کوي چې د ټولنيزو رسنيو لکه: راډيو، ټلويزيون، ورځپاڼو او مجلو نه په استفادې سره د مختلفو ټولنو د خلکو او رهبرانو نظر د نورو ټولنو په هکله په مطلو به توګه څرګند او شکل ورکړي.

**فعاليت**: د تبليغ د مثبتو اغېزو په اړه په لنډ ډول توضيح ورکړئ.

**نظامي وسايل**: دولتونه د خپلو موخو د عملي کولو لپاره له نظامي وسايلو نه په دوه ډوله ګټه اخلي.

١- نظامي وسايل په مستقيمه توګه استعمالوي.

٢- يا له هغه نه يوازې د يو مخه نيوونکي او ګواښ ورکوونکي عامل په توګه کار اخلي.

په اوسنۍ پېړۍ کې ډېرې ورانوونکې وسلې جوړې شوي دي، لکه: له لويې وچې څخه تېرېدونکي راکټونه (قاره پيما) د اتومي خوليو سره، اتومي ميکروبي، کيمياوي بمونه چې د هغو استعمال نه يوازې ګټه نه لري، بلکې د وړونکو او بايلونکو دولتونو دواړو د تباهۍ سبب کېږي. يعنې دا چې د دې وسلو نه ګټه اخيستنه وړونکې او بايلونکې نه لري؛ دواړه تباه کېږي. له دې امله دولتونه د جګړې له ښکېل کېدو څخه ډډه کوي. له دې وسلونه د مقابل لوري له جګړې څخه ډډه کولو، ډارولو او د ګواښ په توګه ګټه اخلي، د بېلګې په توګه: په اتومي وسلو باندې د اسرائيلو مسلح کېدل، له غربي هېوادونو څخه د نظامي تجهيزاتو پېرودل او اتومي وسلو ته د لاس رسي په خاطر د هند او پاکستان رقابت.

**فعاليت**: له خپلې ډلې سره بحث وکړئ، د ذکر شويو مطالبو نه علاوه نورې کومې نظامي وسيلې پېژنئ؟

### د لوست تکرار

• ..................................................................................................................................

• ..................................................................................................................................

• ..................................................................................................................................

### پوښتنې

١- بهرنۍ سياست معرفي کړئ؟

٢- د خاورې تماميت څه معنا افاده کوي؟ په ځوکړښو کې يې وليکئ.

٣- ملي ګټې څه شی دي؟

٤- دويمه درجه موخې کومې دي؟ نوم يې واخلئ.

٥- په نړيوالو اړيکو کې هدف ته د رسېدو وسيلې کومې دي؟ يوازې نوم يې واخلي.

### کورنۍ دنده

د تبليغ يا پروپاګنډ او پر دولتونو باندې د هغه د اغېزو په باره کې پنځه کرښې وليکئ.

# فرهنګي اړيکي

په تېر لوست کې مو د سياسي اړيکو په اړه پوهه حاصله کړه. په دې لوست کې به له فرهنګي اړيکو سره آشنايي پيدا کړئ.

## خبرې پرې وکړئ

د ورځنيو چارو په بهير کې د خلکو ترمنځ د فرهنګ اصطلاح زياته اورېدل کېږي، آيا تاسې کله د دې اصطلاح د معنا په هکله فکر کړی دی؟

## فرهنګ څه شی دی؟

فرهنګ د پوهې، باورونو (عقايدو)، مهارتونو او فنونو هغه مجموعې ته ويل کېږي چې د ټولنې د خلکو ترمنځ شريک او له يوه نسل نه بل نسل ته انتقالېږي.

## فرهنګي نظام څه شی دی؟

په هره ټولنه کې د ګډو عقيدو او ارزښتونو يوه مجموعه موجوده ده چې د هغې ټولنې د ټولنيز نظام بنسټ جوړوي او د ټولنې خلك د هغه په بنا عمل کوي. دغه مجموعه د فرهنګي نظام په نامه يادېږي.

## د ټولنو ترمنځه د فرهنګ د انتقال له ډولونو سره آشنا شئ



فرهنګي اشاعه (خپراوي)  فرهنګي مبادله  فرهنګي يرغل(تهاجم)

## فرهنګي اشاعه (خپراوی)

د ټولنو تاريخ او فرهنګي نظامونه د دې واقعيت بيانوونکي دي چې معمولاً د ټولنو فرهنګ د ټولنې د خلکو په لومړي تماس کې، لکه: جګړه، سوداګري او مهاجرت کې بدلون مومي. د ټولنې فرهنګ ته د نورو نظامونو د فرهنګ عناصر ورګډېږي؛ معناګانې او نښې د انسانانو ترمنځ د هر ډول تعامل، ګډون او اړيکو وسيله ده. له دې امله نښې په بېلابېلو ټولنو کې د خلکو په بېلا بېلو اړيکو کې شتون لري، ممکنه ده چې دا فرهنګي عناصر له يوې ټولنې نه بلې ټولنې ته انتقال پيدا کړي. د بېلګې په توګه: ستاسې خپلوان د حج د فريضې د اداکولو لپاره بيت الله شريف ته ځي. کله چې د بيت الله شريف نه بېرته راګرځي او تاسې د هغو ليدو ته ورځئ، نو ښکاره ده چې له هغه څه نه چې ليدلي او اورېدلي يې دي او د نورو هېوادونو له خلکو سره د ليدنې کتنې په اړه، خبرې کوي. نن ورځ

د ټولنیزو رسنیو له شتون سره سره  چې دا عناصر له جغرافیایي سرحدونو نه اخوا انتقالوي، د فرهنګي عناصرو لېږدول له یوې ټولنې نه بلې ټولنې ته ډېر آسان شوي  او په ورځنیو چارو اوښتي دي. علمي کشفیات، د ژوندیو موجوداتو په اړه عقیدې او هغه مکتبونه چې نوي آندونه بیانوي، هغه مطالب دي چې هره ورځ د رسنیو له خوا انتقالېږي او په مختلفو فرهنګي نظامونو اغېزه اچوي. همدارنګه نوي افکار چې د فلمونو او نمایشنامو په چوکاټ کې خپرېږي، ممکنه ده چې د یوې ټولنې فرهنګي عناصر بل فرهنګي نظام ته انتقال کړي. پوهان له یوې ټولنې نه بلې ټولنې ته فرهنګي لیږدېدو ته چې خپله تر سره کېږي د فرهنګ رواجېدل( یااشاعه) وایي. د فرهنګ اشاعه د ټولنې د فرهنګي نظام د بدلون او تحول یو مهم عامل دی، ځکه چې د معناګانو متقابل پیوستون او  نوې عقیدې، د نورو عناصرو او فرهنګي نظام د بدلون لامل ګرځي.

د فرهنګ بدلون په خپل وار سره د ټولنیزو، سیاسي او اقتصادي نظامونو ساحوته هم بدلون ورکوي. فرهنګي اشاعه، کله د فرهنګ د غوړیدو او کله هم  یوه فرهنګي نظام ته د بل فرهنګ د جذب کېدو لامل ګرځي. د بېلګې په توګه: کولای شو د اسلام د فرهنګ له اشاعې څخه په اروپا کې د صلیبي جګړو په مهال او له هغه نه وروسته یادونه وکړو. د اروپایانو او مسلمانانو د لیدو کتو په بهیر کې په سوداګرۍ، جګړو، اسلامي هېوادو ته د سفر او همدارنګه د مسلمانانو علمي مرکزونو ته د محصلانو لېږل، مخصوصاً اسپانیا او د افریقا په شمال کې د دې لامل شو چې د ابن رشد، ابن خلدون فلسفي او ټولنیزې نظریې او همدارنګه د مسلمانانو په ښوونځیو کې د ابن سینا او ذکریا رازي د ښوونې او روزنې پروګرامونه، لکه: نظامیه اروپا ته انتقال شول چې له مسیحي فرهنګ سره په ترکیب کې د هغې فرهنګ په پرمختګ کې اغېزمنه واقع شول. له دې کبله ویلی شو چې د فرهنګ په ساحه کې هم لکه، سیاست او اقتصاد کې مختلف فرهنګونه سره مخامخ کېږي. عناصر یو له بل نه په پور اخلي، له یو بل سره یو ځای کېږي. د فرهنګونو نوي شکلونه راڅرګندېږي، یو پر بل غالبېږي، ځینې فرهنګونه د زمانې په تېرېدو سره له منځه ځي او ځینې فرهنګونه دوام پیدا کوي.

**فعالیت**: د خپلې ډلې سره بحث وکړئ، د سریالونو او فلمونو اثرات چې د ټلویزیونونو له لارې خپرېږي د خلکو په فکرونو او فرهنګي عقیدو باندې څه ډول اغېزه لري؟

## فرهنگي راکړه ورکړه Coltural exchange

ټولنې د هغو عقایدو له ورود سره چې د فرهنګي نظام له اصلي عناصرو سره توپیر ولري، مقاومت کوي؛ په داسې حال کې چې د نورو عناصرو د بدلون مخه نه نیسي او حتا په ځینو ساحو کې د فرهنګي عناصرو او عقیدو اخیستل هڅوي. په داسې ځایونو کې ټولنې له عناصرو او فرهنګي نظامونو نه په ارادي ډول یا هم د یوه پلان په چوکاټ کې له نورو فرهنګونو نه عناصر مني. فرهنګي انتقال په ارادي او د پلان په بنسټ په هغو ساحو کې چې فرهنګي نظام اجازه ورکړي، فرهنګي مبادله نومېږي. دا ډول فرهنګي انتقال دوه اړخیزه دی؛ په دې معنا چې په هغه کې عناصر اخېستل او ورکول کېږي ښایي چې فرهنګي مبادله نا برابره مبادله وي او له یوه فرهنګي نظام نه بل فرهنګي نظام ته ډېر شمېر عناصر انتقال شي؛ د بېلګې په توګه څرنګه چې د اسلام پیغمبر حضرت محمدﷺ فرمایلي دي: (**اُطْلُبو العِلْمَ وَ لَوْ بِالصِيْن**) ژباړه: ( د علم په لټه کې اوسئ که څه هم په چین کې وي) له نورو ټولنو نه د فرهنګ اخیستل، مجاز بولي. خو دا په دې معنا نه ده چې خلک هغه عقاید چې د توحید او د اسلام د فرهنګي نظام مغایر وي، له نورو ټولنو نه دې واخلي.

**فعالیت**: د خپلې ډلې د غړو په مشوره د فرهنګي مبادلې څو بېلګې بیان کړئ.

## آیا پوهېږئ فرهنګي یرغل څه شی دی او د ټولنې په فرهنګ باندې څه اغیز لري؟

د فرهنګي نظامونو تر منځ د فرهنګي عناصرو انتقال همېشه په آزاد چاپېریال دوه اړخیزه او په خپله خوښه نه وي. ښایي د عناصرو د انتقال بهیر داسې وي چې د هغې په ترڅ کې د یوه فرهنګي نظام په اصلي عناصرو تېري وشي. هرکله چې د فرهنګ انتقال یو اړخیزه، بې له خپلې خوښې او جبري وي، د فرهنګي یرغل په نامه یادېږي. اوس مهال چې صنعت پرمختګ کړی او د عناصرو لېږدول د څپو او تیلیفون په ذریعه نوې بڼه ځانته غوره کړې ده، نوځینو هېوادونو له دې عواملو نه په ګټه اخیستو سره په نورو فرهنګونو باندې په پراخه توګه د تېري او تهاجم امکانات لاس ته راوړي دي. د فرهنګي راکړې ورکړې په خلاف چې په هغه کې فرهنګي نظامونه پراختیا مومي او د هغو بدلونونه د زیاتې پراختیا لامل ګرځي، په فرهنګي تېري کې د فرهنګي نظامونو اصلي ارزښتونه د ګواښ لاندې راځي او دا کار د نظام د له منځه تللو په معنا دی. د منځنۍ آسیا له مسلمانانو او د قفقاز له منطقې سره د پخواني شوروي د کمونستانو مقابله یو ډول فرهنګي تېری

و چې له ټولو وسیلو، لکه: د نظامي ځواك او تبیلغاتو څخه په استفادې سره یې غوښتل په دې سیمه کې د دین ریښې له منځه یوسي.

**فعالیت**: له خپلې ډلې سره بحث وکړئ او بیا د فرهنګي تیري منفي اړخونه بیان کړئ.

## د کنټرول او هدایت فرهنګ څه شی دی؟

د ټولنو ترمنځ فرهنګي اړیکې کله ناکله دا امکان هغه ته پیداکوي چې د بلې ټولنې فرهنګ ته لاره او جهت ورکړي او هغه د خپلې خوښې خوا ته سوق کړي. په داسې حالت کې ویل کېږي چې د یوې ټولنې فرهنګ د بلې له خوا کنټرول او هدایت شوی دی، د یوې ټولنې د فرهنګ کنټرول د نورو ټولنو له خوا له دې امله د اهمیت وړ دی چې ټولنې کولای شي د فرهنګي اړیکو له لارې د بل هېواد خلك د هغوی د خپل هېواد له داخل نه په خپل خدمت کې وګوماري.

**فعالیت**: کنټرول او هدایت په کومو شکلونو صورت نیسي؟

### د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................

### پوښتنې

۱- فرهنګي راکړه ورکړه تعریف کړئ.

۲- د فرهنګي راکړې ورکړې او فرهنګي یرغل توپیر څرګند کړئ.

۳- آیا د اسلام سپیڅلی دین له نورو ټولنو څخه د فرهنګ اخیستل مجاز بولي؟ دلیل راوړئ.

٤- د فرهنګي تهاجم مثال ولیکئ.

٥- د کنټرول او هدایت فرهنګ څه شی دی؟

### کورنۍ دنده

د فرهنګي تهاجم د مخنیوي د لارو چارو په اړه خپل نظریات په څو کرښو کې ولیکئ.

# نړيوال کېدل (جهانی کیدل)

له دې مخکې تاسې د فرهنګي اړيکو په اړه معلومات حاصل کړل؛ په دې لوست کې به له نړيوال کېدلو سره آشنا شئ.



## نړيوال کېدل څه شی دی؟

د نړيوال کېدلو اصطلاح په دې ورستيو کلونو کې د اقتصادي، فرهنګي، سياسي، داخلي او نړيوال سياست کولو په ساحه کې يو له ډېرو کارېدنکو اصطلاحګانو څخه پېژندل کېږي. نړيوال کېدل په بېلابېلو سياسي، اقتصادي، فرهنګي او ارتباطي برخو کې يو موټی کېدل او د مصنوعي او قراردادي (مثل شوو) سرحدونو له منځه وړل دي.

نړيوال کېدل په لاندې ډولونو سره تعريف شوي دي.

۱- نړيوال کېدل د نړيوال کېدلو په معنا.

۲- نړيوال کېدل د آزادولو په معنا.

۳- نړيوال کېدل د پراخېدلو په معنا.

٤- نړيوال کېدل د پولې يا سرحد له منځه وړل.

په واقعيت کې نړيوال کېدل يو عمومي بهير دی چې د انساني ژوند مختلفې برخې تر خپل اغېز لاندې راولي.د سياسي، فرهنګي، اقتصادي، حقوقي، تکنالوژيکي، سيمه يزو او ټولنيزو نښو او علامو سره ملګری دی. نوويلای شو چې: نړيوال کېدل هغه ټولنيز بهير دی چې په هغې کې جغرافيايي قيدونه او بندونه چې په ټولنيزو او فرهنګي اړيکو يې سيوری غوړولی دی، له منځه ځي او خلك د يوې ټولنې او ګډ فرهنګ پر لورې مخکې ځي.

**فعالیت**: ستاسې په فکر، آیا نړیوال کېدل امکان لري او که نه؟

## د نړلوال کېدو اړخونه

نړیوال کېدل مختلف اړخونه لري، لکه: اقتصاد، سیاست، فرهنګ او ټولنه.

د نړیوال کېدلو د اقتصادي اړخ په اړه په څه پوهېږئ؟

د اقتصاد نړیوال کېدل د لېږد رالېږد د وسایلو او د اړیکو د شبکو له پرمختګ سره سم چې د سوداګرۍ او د پانګې د پراخ انتقال سبب شو، پیل شول. د اقتصاد د نړیوال کېدلو برترې په شپاړسمې مېلادي پېړۍ کې پیل او په نولسمه پېړۍ کې چټکوالی مومي. د تکنالوژۍ په ډګر کې د پرمختګ او اقتصادي فعالیتونو د ورځ په ورځ پیاوړتیا د نړۍ له اقتصادي شبکو سره تړاو لري. په شلمه پېړۍ کې مخصوصاً د ختیځ بلاک له ړنګېدو څخه وروسته د نړیوالو مالي بازارونو پراختیا او پرمختیا، د څو ملیتي شرکتونو چټک پرمختګ، د نړیوالو مالي مرکزونو پراختیا او د کارګرانو مهاجرت دا ټول د اقتصاد او د اقتصادي مسئلو په نړیوال کېدو دلالت کوي. تېره پېړۍ د اقتصاد د نړیوال کېدو او غوړېدو پېړۍ وه، د نړیوالې سوداګرۍ کچې پراختیا پیدا کړه، پراخې فعاله او کم مصرفه ارتباطي شبکې د نړیوال کېدو په پراختیا کې شکل ونیو، د کمپیوټر او مخابراتو پرمختیا، دیجیتال او مصنوعي سپوږمکیو ډېر رول پیدا کړ، پخوا ډېر توکي د سوداګرۍ کولو وړ نه وو، خو نن ورځ هغه د نړیوالې سوداګرۍ په بهیر کې قرار لري؛ اطلاعات هم په سوداګرۍ کې شامل شوي دي، لکه: اداري او مدیریتي مشورې، د نرم افزارو لیستونه، فلم، کست، دیسکونه، تلویزوني خبرونه او داسې نور. په دې وروستیو کلونو کې د سوداګرۍ د نړیوالې شبکې د غښتلتیا او پراختیا لپاره ستر ګامونه اخیستل شوي دي. برقي (الکترونیک) سوداګرۍ خلکو ته توان ورکړی دی چې د نړۍ له هرې سیمې نه چې وغواړي د خپلې خوښې توکي وپیري. د اقتصاد په نړیوال کېدو سره شرکتونو او څوملیتي بانکونو هم په نړیوال اقتصاد کې د پام وړ ونډه درلوده. ملي دولتونه نور یوازې د سرحدونو د ساتنې واکمن ځواکونه دي.

د اقتصاد د نړیوال کېدو په پایله کې، ستر صنعتي هېوادونه په وروسته پاتې هېوادو باندې له اقتصادي پلوه واکمن کېږي او هغه د تل لپاره پخپل ځان پورې تړلي ساتي او صنعت یې هېڅکله هم وده نه کوي.

**فعالیت**: ستاسې په فکر، شلمې پېړۍ ته ولې د نړیوال کېدو د اصلي لورو، پرمختګ او غوړېدو پېړۍ وايي؟ په هکله يې معلومات ورکړئ.

## د نړيوال کېدو د سیاسي لوري په اړه په ټولګي کې خبرې وکړئ

د داخلي مسایلو په حل کې د غیر فعالو دولتونو کمزورتیا، د کورنیو او بهرنیو مسایلو د پېچلتیا او د سیمه ییزو او نړیوالو تړونونو او اتحادیو پرمختګ او د نړیوالو سازمانونو منځ ته راتلل، ټول په نړۍ کې د یوه نوي سیاسي نظم په رامنځ ته کېدو باندې دلالت کوي. نن ورځ ممکنه ده حتا د دولتونو د مالکیت حق، د هغو مسایلو په واسطه چې په ټوله نړۍ پورې اړه لري، یا د بشر حقونو ته د نه پاملرنې له امله له منځه ولاړ شي. د ملګروملتونو د امنیت شورا هم حق لري چې د نړیوالې سولې او امنیت د مسایلو په اړوند د دولتونو واکمني له منځه یوسي. په داسې شرایطو کې دولتونه په عملي توګه اړ دي چې نړیوال بندیزونه ومني. اصولاً په نړیوال کېدو سره **ملي ګټې** او نړیوالې ګټې د ګډېدو په حال کې دي. عقیده پر دې ده چې په نوې نړۍ کې د سیاسي قدرت د وېش له امله هېڅ هېواد په مطلقې سیاسي واکمنۍ کې نه پاتې کېږي؛ خو د سیاست د نړیوال کېدو په پایله کې سیاست دا دې چې ځینې ستر قدرتونه په هوښیارانه توګه د نړۍ په ټوله سیاسي وضعه باندې واکمن شوي دي او خپلې غوښتنې د ملګرو ملتونو په سازمان باندې د خپل نفوذ د عملي کېدو له لارې د نړۍ په ټولو هېوادونو باندې عملي کوي.

**فعالیت**: د نړیوال کېدو په اړه خپل فکر د خپلې ډلې د غړو په ګډه نظر یا یووالي سره بیان کړئ.

## دنړیوال کېدو فرهنګي اړخ

په فرهنګي اړخ کې هم د نړیوال کېدو اغېزې فوق العاده ډېرې او د پام وړ دي. د انسان په تاریخ کې تل فرهنګي راکړې ورکړې شتون لري، لوی مذهبونه، لکه: د اسلام سپېڅلی دین چې نړیوال دین دی، تل يې د یوې فراملي، نړیوالې او واحدې ټولنې د جوړېدو دعوت کړی دی.

آیا پوهېږئ! فراملي څه معنا لري؟

کله چې یوه مسئله په یوه ځانګړي دولت پورې اړه نه پیدا کوي، بلکې له یوه نه په زیاتو هېوادونو پورې اړه پیدا کوي، د فراملي په نوم یادېږي، خو هغه څه چې نن ورځ مطرح دي، په عملي توګه د

نړیوالو ارزښتونو په نامه، د غربي فرهنګ او ارزښتونو دودول او پراخول دي، ځکه چې الکترونیک انقلاب، د اړیکو د وسایلو چټکه وده ، ټولنیزې رسنۍ، سپوږمکۍ، انټرنېټ او همدارنګه د توریزم د وسایلو چټکې ودې د فرهنګ د نړیوال کېدو امکانات برابر کړي دي. خو په دې ترڅ کې غیر غربي سنتي او کوچني فرهنګونه د غربي فرهنګونو په پرتله ډېر لږ امکانات لري. همدا علت دی چې دوی د یوې نابرابرې جګړې په وړاندې شتون لري، د یوه نامعلوم برخلیک په وړاندې یې درولي دي. لنډه دا چې په فرهنګي ډګر کې تکنالوژیکي نوښتونه او د نړیوالو رسنیو را پیدا کېدل د دې موجب شول، چې د فرهنګي سرحدونو نه تېر شي. الکترونیکي وسایل او وسیلې د دې وس لري چې د ټولې نړۍ خلك د نړۍ له مختلفو فرهنګونو سره آشنا کړي، همدارنګه د نړیوال کېدو له امله امکان لري چې د نړۍ زیات شمېر هېوادونه خپلې فرهنګي شتمنۍ له لاسه ورکړي او پر ځای یې د لویدیځ غولوونکي فرهنګ له مخې ژوند ته بدلون او غربي رنګ ورکړي.

**فعالیت**: ستاسې په فکر، نورکوم موضوعات د نړیوال کېدو له فرهنګي اړخ سره تړاو ولري؟ معلومات ورکړئ.

## د نړیوال کېدو ټولنیز اړخ

ژوره نړیواله کتنه موږ ته د دې توان راکوي چې د یوې ټولنې ستونزې کېدای شي په نورو ټولنو کې ډېرې زیاتې وي، مثلاً: بې وزلي (فقر) د نړیوالو ټولنیزو ستونزوڅخه ده چې په اروپا او امریکاکې لیدل کېږي، خو د نړیوال کېدو له نظره دې ټکي ته متوجه کېږو چې دا ستونزه په لاتین امریکا، افریقا او آسیاکې زیاته تر سترګو کېږي. د ښځو ټولنیزې ستونزې، د قومیت او توکم پالنې مسئله او نورې داسې بېلګې دي چې هغوی ته کولای شو اشاره وکړو.

د ټولنیز نړیوال کیدو نور عناصر د مهاجرتونو چټکه پراختیا، د توریزم صنعت، د ژوندانه د بېلګو نړیوال کېدو او د نړیوالو ګډو مسایلو څخه عبارت دي.

## د نړیوال کېدو ښېګڼې

په لنډه توګه ویلی شو چې نړیوال کېدل دا لاندې ښېګڼې او خوندونه لري: د اقتصادونو د بهیر پیوستون، د اطلاعاتو او خبرتیا وو د پراخېدو په وړاندې د خنډونو لېرې کول.

## د نړیوال کېدو زیانونه

په نړۍ کې د شغلي امنیت له منځه وړل؛ د شتمنو او خوارو خلکو د ژوند ترمنځ د واټن زیاتېدل، د ګټې زیاتېدل، دولتي سود چې امکان لري د ماده پرستۍ سبب شي او په ځانګړې توګه هغه هېوادونه چې ستر مادي قدرت لري او په نظامي، رسانه يي، تکنالوژیکي او اقتصادي ډګرونو کې اوچت لاس لري. خوار هېوادونه د خپلو هیلو موخه ګرځوي، د دوی شتمني په مختلفو ډولونو ترې اخلي (غصب کوي يي)، خپل فرهنګورباندې تحمیلوي او نړۍ د نظامي شخړو او لانجو ډګر ګرځوي.

**فعالیت**: د نړیوال کېدو په هکله خپلې ټولنیزې ستونزې په څو کرښو کې ولیکئ.



### د لوست تکرار

- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................
- ..................................................................................................



### پوښتنې

۱- نړیوال کېدل تعریف کړئ.

۲- په شلمه پېړۍ کې کومو موضوعاتو له نړیوال اقتصادسره تړاو درلود؟

۳- کوم موضوعات د نړیوال کېدو د شکل ګیرۍ لامل ګرځي؟

٤- کومو موضوعاتو د فرهنګ د نړیوال کېدو امکانات برابر کړي دي؟

۵- یوازې د نړیوال کیدو د ټولنیزو ستونزو نوم واخلئ.



### کورنۍ دنده

د نړیوال کېدو په اړه څو کرښې ولیکئ.

## د خپرکي لنډيز

- نړيوالې اړيکې د سياست د علم هغه برخه ده چې په عمومي توګه سياسي، حقوقي او فرهنګي مسئلې څېړي.
- په نړيوالو اړيکو کې هر هېواد د خپل بهرني سياست د وړاندې بيولو لپاره له ډول، ډول وسيلو څخه ګټه اخلي. هغه وسيلې چې دولت يې د خپلو موخو د وړاندې بيولو لپاره ترې کار اخلي، کولای شو له اقتصاد، د فرهنګي تبليغاتو او د ديپلوماسۍ او نظامي ځواک نه يادونه وکړو.
- د انسانانو ټول کوښښونه دا دي چې ژوندي پاتې شي او ژوند وکړي؛ همدا وجهه ده چې په هر نظام کې د هغو کارونو چې سرته رسېدلي، لويه برخه يې د ژوند د اړينو وسايلو د پوره کولو لپاره ځانګړې شوې ده چې هغه د اقتصادي فعاليت په نامه يادېږي.
- په نړيوال چاپېريال کې يوازې ملي ګټو او يا ملي امنيت ته پاملرنه، نه کېږي؛ بلکې نورې موخې هم مخ ته بيايي. د دولتونو خبرې او فداکارۍ زياتره د مرستې، د سوداګرۍ او د توکو د راکړې ورکړې، پانګه اچونې او د فرهنګي مبادلو د پراختيا په مقصد صورت نيسي.
- فرهنګ د پوهې، باورونو (عقيدو) وړتياوو (مهارتونو) او فنونو له مجموعې څخه عبارت دی چې د ټولنې د خلکو تر منځ ګډ او له يوه نسل نه بل نسل ته انتقالېږي.
- نړيوال کېدل د ټولنيز کېدو د بهير په معنا دی چې له ډېرې مودې را په دې خوا پيل او په پراختيا کې دی؛ په هغه کې هغه جغرافيايي پولې چې په ټولنيزو اړيکو يې سيوری اچولی دی، له منځه ځي.

# د بشر حقوق

په دې څپرکي کې لاندې درسونه لولئ:

د بشر د حقونو تاریخچه

• د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه

•په افغانستان کې د بشر ي حقونو خپلواک کمیسیون

# د څپرکي موخې

تاسو د دې څپرکي په لوستلو سره لاندې پوهنیزو او مهارتي موخوته رسېږئ:

- د بشر د حقونو له تاریخچې سره آشنایي.
- د بشري حقونو له نړیوالې اعلامیې سره آشنایي.
- د افغانستان د بشري حقونو د کمیسیون له تاریخچې سره آشنایي
- په ژوند کې د بشر د حقونو اهمیت بیان کړای شي.
- د بشر د حقونو د اعلامیې مهم مواد توضیح کړای شي.
- په افغانستان کې د بشر د حقونو وضعیت تحلیل کړای شي.
- د اتباعو د حقونو او دندو ترمنځ یوه مقایسه وکړای شي.

# د بشر د حقونو تاریخچه

په تېر لوست کې د نړیوالو اړیکو او د نړیوالو (اقتصادي، سیاسي، فرهنګي) اړیکو د لاملونو او نړیوال کېدو سره آشنا شوئ، په دې لوست کې د بشر د حقونو له تاریخچې سره آشنا کېږئ.

## بحث پرې وکړئ

## حقوق څه شی دي؟

حقوق د حق د جمعې په معنا دی او زیاتې معناګانې لري چې له هغې جملې څخه ځینې يې په لاندې ډول دي:

۱- حق د واقعیت سره د مطابقت په معنا دی، لکه: وینا يې حق ده یعنې دا چې خبره يې رښتیا ده او د واقعیت سره مطابقت لري.

۲- حق د برخې په معنا دی لکه: دا زما حق دی.

۳- حق د یو چا لپاره د ګټې د ثبوت په معنا دی، لکه: پلار پر زوی حق لري؛ یا ښځې پر خپل مال باندې حق لري.

اوس مو چې د حق معنا زده کړه، لازمه ده چې حقوق وپېژنئ. حقوق د حقوق پوهانو په اصطلاح کې دوه معناوې لري:

۱- حقوق د عمومي او الزامي قواعدو هغه مجموعه ده چې د نظم د منځ ته راتلو او عدالت د ټینګښت په منظور د انساني ټولنې په ژوندانه باندې حکومت کوي او اجرا يې د دولت له خوا تضمین کېږي. دغه مجموعې ته قانون وايي. دغه پورته وینا له حقونو سره د قانون د مترادفوالي په معنا ده، لکه: مدني حقونه، د جزا حقوق د سوداګرۍ حقونه او داسې نور.

۲- د یوه چا د ګټې او برخې د ثبوت لپاره چې قانون له هغې نه ملاتړ کوي؛ لکه: د ژوندانه حق چې هر څوک حق لري چې ژوندی پاتې شي او قانون د انسان په ژوندانه باندې تېری منع کوي. نورې بېلګې يې: د مالکیت حق، د واده کولو حق او داسې نورې دي.

کله چې د حقوق کلمه د جمعې په عنوان بیان یا ذکر کېږي، زیاتره له هغه څخه مراد قانون وي، کله چې حق د مفرد په توګه ذکر کېږي له هغه څخه مراد د یوه چا یا د څو کسانو لپاره د ګټې اثباتول وي.

## آیا پوهېږئ چې حقوق د ګټې د ثبوت په معنا په څو ډوله دي؟

حقوق د دې اعتبار له مخې چې اقتصادي قیمت لري کنه؟ په درې ډوله دي: غیر مالي حقونه، مالي حقونه او ذهني حقونه.

۱- غیر مالي حقونه: له هغو امتیازاتو څخه عبارت دي چې خلکو ته ورکول کېږي او په مال سره نه قیمت ګزاري کېږي او په درې ډوله دي:

لومړی- سیاسي حقونه: چې یو هېوادوال ته د هغه د هېوادوالی په خاطر د دولت له خوا ورکول کېږي لکه: دولتي دندو ته لاس رسی، د نوماند کېدو او بل ته د رایې ورکولو حق.

دویم- د کورنۍ حقونه: دغه حقونه د کورنۍ څخه منځ ته راځي، لکه: د مېړونو او ښځو ترمنځ حقوق، د پلار او اولادونو حقونه او د ولایت حقونه.

دریم- د شخصیت حقونه: دغه حقونه د انسان لپاره د هغه د شخصیت په بنسټ ثابتېږي. قانون هغه د انسان د بدني او معنوي سلامتیا د ساتنې لپاره منځ ته راوړي دي، لکه: د ژوندانه حق، د اشخاصو د عزت او معنوي شرف د آزادۍ ساتل.

۲- مالي حقونه: له هغه شتمنۍ څخه عبارت دي چې د پیسو په واسط اندازه کېږي او د خلکو تر منځ د مالي معاملو د ځای په څېر ګڼل کېږي، لکه: د مالونو سره د اشخاصو اړیکه چې عیني حقونه ورته ویل کېږي او د پور ورکوونکي او پور وړي ترمنځ اړیکه چې شخصي حقونه ورته وایي.

۳- ذهني حقونه ( مختلط): له هغه امتیاز څخه عبارت دی چې مالي او غیر مالي دواړه اړخونه لري لکه: د یوه کتاب مؤلف چې د کتاب د تألیف ویاړ ده ته راجع کېږي او دغه یو غیر مالي حق دی او همدارنګه د مالي ګټې امتیاز چې د کتاب د چاپ له کبله یې ترلاسه کوي هم د ده خپل حق دی او دغه یو مالي حق دی.

**فعالیت**: غیر مالي حقونه څو ډوله دي، بیان یې کړئ

## آیا پوهېږئ چې د بشر حقونه څه شی دي؟

هغه حقونه چې انسان یې د ژوند له پیل نه په دې خاطر چې انسان دی، د هغه مستحق ګڼل کېږي؛ د بشر حقونه ورته ویل کېږي. د بشر په حقونو کې ټول حقونه که ذاتي حقونه دي چې له زیږېدو نه انسان ته ورکړل شوي دي او هم کسبي حقونه چې ټولنه یې ورکوي شامل دي. په بل عبارت د بشر

حقونه کولای شو د بنسټیزو معیارونو مجموعه تعریف کړو. چې پرته له هغه به انسانان ونه شي کولای چې د انسان او انساني کرامت ترنامه لاندې ژوند وکړي. د بشر د حقونو ځینې ځانګړتیاوې عبارت دي له:

- د بشر حقونه د وېش وړنه دي
- د بشر حقونه نړیوال دي.
- د بشرحقونه د الله (جَلَّ جَلالُهُ) له لورې یوه تحفه ده.

**فعالیت**: د خپلې ډلې سره له خبرو اترو وروسته وواياست چې کوم نور مطالب د بشر د حقونو په ځانګړتیاوو کې شاملېږي؟

## آیا پوهېږئ چې د بشر حقونه له کومو پړاوونو تېر شوي دي؟

د بشر حقونه د تاریخي ودې په لړ کې له لاندې پړاوونو نه تېر شوي دي.

## لومړی پړاو د ۱۷۸۹ م نه مخکې

دا پړاو د بشر د حقونو د لاس ته راوړو ډېر اوږد پړاو شمېرل کېږي او د بشر د حقونو د لاس ته راوړلو لپاره هڅه او هاندکول د دې پړاو ځانګړتیا ده. د انسان مقام، انسانیت او د بشر حقونه له ډېره وخته د پاملرنې او د بحث وړ موضوع وه. د لرغوني دورې د پوهانو او فیلسوفانو په آثارو او د اسلامي پوهانو او علماوو په لیکنو کې په دې هکله بحث شوی دی؛ د انبیای کرام په کړو وړو، خبرو او کردار کې د انساني کراماتو تایید، خپلواکۍ او د انسانانو په حقونو او د دې حقونو او خپلواکیو په پلي کېدو باندې ټینګار ښکاره او څرګند و. چا چې په هر ډول او په هر مقام کې چې په دې حقونو تیری کړی، د نیوکې او سزا لاندې راغلی دی چې دا ټول، د انسان د اعتبار او د هغه د حقونو د اهمیت نښه ده. د بشرحقونو د تاریخ په اوږدو کې له ستونزو ډکه لاره وهلې ده چې ورو ورو یې د ظلم او تیري پر ضد د ځمکې د سر د وګړو د ګډې مبارزې او سربښندنې له امله چې د تاریخ په بهیر کې یې صورت ونیوه، له منځه یوور او اوسني حالت ته راورسېدل.

په لرغونې دوره کې فیلسوفانو اومتفکرینو قوانین منځ ته راوړل لکه: د حمورابي د بابل د پاچا قانون په (۲۱۲۳- ۲۰۸۰ق.م. کې)، د آتن اساسي قانون په (۵۰۷م. کې)، د هخا منشي پاچا کورش منشور، (پنځمه پېړۍ له میلاد نه مخکې) د روم دولس ګونه الواح (۴۵۰ ق.م. کې)، د روم د

امپراطور ژوستي نين (اقدامات شپږمه پېړۍ له میلاده مخکې)، د مګناکارتا لوزنامه چې د انګلستان د منشور کبیر په نامه مشهوره ده( ۱۲۱۵م.)، د انګلستان د حقونو اعلامیه (۱۸۶۶م.)، د امریکا د خپلواکۍ اعلامیه (۱۷۷٦م.) د ویرجنیا د حقونو لایحه(۱۷۷٦م.) او داسې نور مواد چې د بشریت د تاریخ له لومړي سرنه تر (۱۷۸۹م.) پورې ټولې هڅې د بشر د ذاتي او طبیعي حقونو د لاس ته راوړلو په موخو سرته رسېدلي، ترڅو بشر د خپلو حقونو، آزادیو او ارزښتونو څښتن شي او ګټه ترې واخلي. د دې پړاو په ترځ کې د بشر د حقونو په اړه درې ډوله اړیکې د پام وړوې. د انسان اړیکې له انسان سره، د انسان اړیکې له چاپېریال سره او د انسان اړیکې له تولید سره.

**فعالیت**: له ذکر شویو موضوعاتو نه سربېره کوم موضوعات د بشر له حقونو سره تړاو لري؟ په څو کرښو کې یې ولیکئ او د ډلې استازی دې نورو زده کوونکو ته ولولي.

## د بشر د حقونو د تدوین (لیکنې) دویم پړاو( ۱۷۸۹م.)

د فرانسې د هېواد استازي د ۱۷۸۹ زېږدیز کال د آګست په ۲۸ مه د پاریس په ملي غونډه کې سره را ټول شول او د یوې رسمي اعلامیې په ترځ کې یې د بشر طبیعي او مقدس حقوق وړاندې کړل. هغو ټینګار وکړ چې بشر خپلواک نړۍ ته راغلی، باید خپلواک ژوند ولري او ټول انسانان د حقونو له پلوه سره برابر دي. دې اعلامیې د ټولو سیاسي ډلو موخې د بشر د نه بېلدونکو طبیعي حقونو ساتنه وبلله، لکه: د ملکیت آزادي، امنیت، د ظلم او ستم په وړاندې مقاومت. دا اعلامیه ۱۷ مادې لري چې په رسمي او تاریخي سند کې څرګندې شوې دي.

## درېیم پړاو د بشر د حقونو څرګندېدل (۱۰ د سمبر ۱۹۴۸م.)

له دوو نړیوالو جګړو (۱۹۱٤م - ۱۹۱۸م ) او (۱۹۳۹- ۱۹٤٥ م ) نه وروسته، د نړۍ هېوادونو په ځانګړې توګه هغو هېوادونو چې په جګړه کې ښکېل وو، ډېر معنوي او مادي زیانونه ولیدل. په ځانګړې توګه دویمه نړیواله جګړه( ۱۹۳۹ - ۱۹٤٥ م.) له نورو زیانونو سره سره له ٥٥ میلیونه کسانو نه زیات له منځه یوړل او په میلیونونو کسان معلول شول چې تر اوسه هم د هغو تلافي کول ډېرو هېوادونو ته زیاتې ستونزې پیدا کړې دي. په پایله کې ځینو هېوادو د خپلو ګټو تر لاسه کولو د لالچ (حرص) له امله له میلیونونو خلکو څخه په بې رحمانه توګه د ژوند حق واخیست. تردې چې د ۱۹٤۸م. کال د دسمبر په لسمه د ملګرو ملتونو په ۱۸۳ عمومي غونډه کې د پاریس د شایلو په

قصر کې په ۳۰ مادو کې د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه په ٤٨ موافقو رایو – هېڅ مخالفي رایي نه وې او په ٨ ممتنعو رأیو سره په تصویب ورسېده. د هندو راس او یمن هېوادونو په دې غونډه کې ګډون نه درلود. اته رأیي چې ممتنع وې هغه پخوانی شوروي اتحاد، د جنوبي افریقا اتحادیه، پخوانۍ چکسلواکیا، سعودي عربستان، پخوانۍ یوګوسلاویا او د پولینډ هېوادونه وو. دې هېوادونو ټینګار کاوه چې له اعلامیې سره مخالفت نه لرو، بلکې د ځینو موادو نه یې ملاتړ نه کوو.

**فعالیت**: د اتو هېوادونو د ممتنعو رأیو ورکولو موخه څه وه؟ په ډلو کې پرې خبرې وکړئ.

## څلورم پړاو د بشر د حقونو ټینګښت (١٩٦٦م.)

د بشر د حقونو د اعلامیې په تعقیب د بشر د حقونو درې سنده نور هم د ١٩٦٦ م. کال په ترڅ کې په تصویب ورسېدل چې د ملګرو ملتونو د اعلامیې بشپړوونکي بلل کېږي. دا اساسي اسناد عبارت دي له:

- د سیاسي او مدني حقونو نړیوال کنوانسیون په ١٩٦٦م. کال کې تصویب.
- د سیاسي او مدني حقونونړیوال کنوانسیون په اړوند په ١٩٦٦م کې اختیاري پروتوکول.
- د اقتصادي، فرهنګي او سیاسي حقونو نړیوال کنوانسیون په (١٩٦٦م. کې تصویب.

د یادولو وړ ده چې د بشر د حقونو له دې اسنادو نه وروسته تقریباً ۲۰ نورې لوزنامې او میثاقونه د بشر د حقونو په اړه په تصویب ورسېدل چې د تصویب کوونکو دولتونو لپاره د هغو اجرا کول لازمي دي.

## پنځم پړاو د بشر د حقونو معیار ګڼل(١٩٩٢م.)

د دې پړاو مهمه ځانګړتیا د بشر د حقونو د نړیوال کېدو هڅې دي؛ د اتیایمې لسیزې دویمه نیمایي د سړې جګړې پای راښیي: هغه ایدیولوژي ګانې چې هرې یوې به په خپل ګومان د بشر حقونه زمزمه کول، په یو نه، یو ډول بې رنګ کړل او لاره یې د بشر د حقونو د نړیوال کېدلو لپاره هواره کړه. په دې پړاو کې پخوانی شوروي ړنګ شو او د شوروي اتحاد په دننه کې ۱۵ نور هېوادونه منځ ته راغلل. نوي آزادۍ ته رسېدلو هېوادونو، هر یوه په خپل هېواد کې د بشر د حقونو د اعلامیې ملاتړ وکړ او تر اجرا لاندې یې ونیول. ترڅو چې د بشري ټولنې هڅو د بشر د حقونو د نړیوال کېدو په لاره کې ادامه او عمومیت پیدا کړ. نن سبا بشري حقونه معیار ګڼل د اوسنی زمانې له ځانګړتیاوو

ځخه شمېرل کېږي. بشري حقونه ورځ تر ورځې پراختیا پیدا کوي، دا په داسې حال کې ده چې د نړۍ دولتونه د بشر د حقونو اساسي ستنې چې دولتونو ترونونو په منلو او په تړونونو او سازمانونو کې د دولتونو د غړیتوب چې د اجراٰ ضمانت له ځان سره لري، له کنوانسیونونو سره د تړون کوونکو هېوادونو په قوانینو کې، په ځانګړې توګه په اساسي قانون کې، په درجولو سره پراختیا ورکوي، د بشر د حقونو دویم نړیوال کنفرانس په ۱۹۹۳م. کال په وین کې چې د دې واقعیت څرګندونه یې کوله د ۱۷۱ هېوادونو په ګډون سره جوړ شو، په داسې حال کې چې په ۱۹٤۸ م کال کې د هغو هېوادونو شمېر چې د بشري حقونو اعلامیه یې لاسلیک کړې وه، له ٤۸ هېوادونو نه زیات نه وو.



### د لوست تکرار

- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................
- ..............................................................................................



### پوښتنې

۱- د حق درې اعتباري معناوې ولیکئ.

۲- د بشري حقونو ځانګړتیاوې کومې دي؟ معلومات ورکړئ.

۳- ذاتي یا طبیعي حقوق کوم دي؟ له مثال سره یې واضح کړئ.

٤- د بشر د حقونو د پنځم پړاو ځانګړتیا ولیکئ.

۵- د بشري حقونو دویم، دریم، څلورم او پنځم پړاوونه په کومو نومونو یادېږي؟



### کورنۍ دنده

د هغو پنځو هېوادونو چې د بشري حقونو اعلامیې ته یې رایې ورکړې، نومونه واخلئ.

# د بشري حقونو نړیواله اعلامیه

لکه څرنګه چې په تېر لوست کې مو ولوستل، بشري حقونه پنځه پړاوونه لري چې هغه دا دي: لومړی پړاو دویم پړاو د بشري حقونو د تدوین پړاو، دریم پړاو د بشري حقونو څرګندېدل، څلورم پړاو د بشري حقونو ټینګښت، پنځم د معیار په توګه د بشري حقونو د منلو پړاو. په دې لوست کې د بشر د حقونو له اعلامیې سره آشنا کېږئ.



## بحث پرې وکړئ

• د بشري حقونو نړیواله اعلامیه په کومه نېټه لاسلیک شوه او څو مادې لري؟

تاسې ټولو د ورځپاڼو، راډیوګانو، او تلویزیون له لارې د بشر د حقونو د اعلامیې نوم اوریدلی او ورسره آشنا یاست؛ مخکې له دې چې د بشري حقونو په اړه معلومات درکړل شي، لومړی د اعلامیې په معنا پوه شئ: هغه سند چې په هغه کې دوه یا څو هېوادونه د یوې ځانګړې مسئلې په اړه خپل کړه وړه او یا د نظر یووالی او ګډې هڅې په رسمي توګه اعلاموي، اعلامیه ورته ویل کېږي. د بېلګې په توګه: د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه، د فرانسې د تبعه د بشري حقونو اعلامیه او داسې نور. بشر د خپلو انساني او حیاتي حقونو د لاس ته راوړلو لپاره د نړۍ په مختلفو برخو کې بې شمېره هڅې او مبارزې کړې دي او په دې لاره کې یې ډېرې قربانۍ ورکړې دي، ترڅو د بشري حقونو اوسنۍ بڼې ته یې وده او پرمختګ ورکړ او په پای کې یې په ۱۸۳مه غونډه کې د ۱۹۴۸م کال د دسامبر په ۱۰ نېټه د پاریس د شایلو په ماڼۍ کې په تصویب ورسید. د ملګرو ملتونو عمومي غونډې له ټولو هېوادونو، مؤسسو، خلکو او اشخاصو څخه وغوښتل چې د بشر د حقونو د اعلامیې متن د خپل ژوند برخلیک وبولي او په هغه کې د ځای په ځای شویو حقونو په عملي کولو کې هڅه وکړي. دا اعلامیه یوه سریزه او دېرش مادې لري. د دې اعلامیې په سریزه کې یو لړ بنسټیز مفاهیم او نظریې شته چې د اعلامیې لاسلیک کوونکو په هغې کې خپل باور او اعتماد اعلان کړی دی. (۱ او ۲) مادې د څلورو اصلونو؛ آزادۍ، برابرۍ، د تبرې نه کول او وروری چې په حقیقت کې ایدیولوژیکي بنسټ او د اعلامیې روح جوړوي، لري.

**فعالیت**: بشري حقونو څرنګه اوسنۍ بڼې ته پراختیا وکړه؟ په دې اړه معلومات ورکړئ.

## آیا پوهېږئ د بشري حقونو نړیواله اعلامیه څه اهمیت لري؟

• د بشر د حقونو نړیوالې اعلامیې اهمیت د هغې په عمومي توب او نړیوال توب کې دی. په هغې کې ځای پر ځای شوې آزادۍ نه یوازې یوه هېواد ته او یا د خلکو د یوه ځانګړي ګروپ لپاره، بلکې د ټول بشر او ځمکې په سر د هر انسان لپاره تدوین شوې ده.

• د دې اعلامیې بل اساسي اهمیت په هغې کې د آزادۍ او برابرۍ اصولو شتون دی چې له دې حقونو څخه د استفادې په لاره کې هېڅ ډول استثنأ او ځانګړتیا مجاز نه بولي. د بشري حقونو په اړوند هېڅ ډول تبعیض نه مني.

• د دې اعلامیې یو ډېر مهم اهمیت دا دی چې په (۱۹۶۹ م کال) د ملګرو ملتونو په عمومي غونډه کې یې عملي بڼه ځانته غوره کړه او دولتونه په دې مکلف کړای شول چې دا حقوق او آزادۍ په خپلو عادي او اساسي قوانینو کې شامل کړي، په عمل کې یې پلي او رعایت کړي.

**فعالیت**: د بشر د حقونو دوه مادې چې زموږ په اساسي قانون کې شاملې شوې دي، له خپلې ډلې سره له مشورې وروسته ولولئ.

## د بشر د حقونو اعلامیه د کومو حقونو او آزادیو لرونکې ده؟

د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه د مدني، اقتصادي، سیاسي، اجتماعي او فرهنګي حقونو او آزادیو لرونکې ده چې په لاندې ډول په لنډه توګه توضیح کېږي.

• د نړیوالو بشري حقونو مدني او سیاسي حقوق او آزادۍ عبارت دي له: د ژوند حق، شخصي امنیت او آزادۍ، نه شکنجه کول، نه تحقیرول، له غیرانساني سزاو ورکولو مخنیوی، د توقیف او یا د غیر قانوني بندي کولو مخنیوی، د مریي توب مخنیوی، د انسان د شخصیت او حقونو پېژندنه په هر ځای کې چې وي. د قانون د ملاتړ حق او خپلواکو او ناپییلو محکمو ته د مراجعې څخه د ګټې اخیستلو حق، د تابعیت حق، د واده کولوحق، د فکر او عقیدې د آزادۍ حق، د بیان او مطبوعاتو د آزادۍ حق، د انجمنونو د جوړولو حق، دګوندونو د جوړولو حق، په عمومي چارو کې ګډون او په دوره یې ټاکنو کې ګډون او داسې نور..

• د بشر د حقونو د نړيوالې اعلامیې اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي حقونه په لاندې ډول دي: ټولنيز امنيت او د ژوند له مناسبې کچې نه ګټه اخېستل د انساني کرامت په پام کې نيولو سره د کارکولو حق او د کار د آزاد انتخاب. د مساوي کار په مقابل کې د مساوي اوجورې حق، د اتحاديو جوړولوحق، د استراحت، فراغت، تفريح، د سوکالۍ او روغتيا حق، د ښوونې او روزنې حق، په علمي او فرهنګي فعاليتونو کې د ګډون حق، د مادي او معنوي ګټو او د فرهنګي فعاليتونو او آثارو نه د ملاتړ حق.

**فعاليت**: فرهنګي حقونه او آزادۍ له اقتصادي حقونو نه بېل کړئ او په څو کرښو کې يې وليکئ.

## د اسلامي کنفرانس بشري حقونو له اعلاميې سره آشنا شئ

د اسلامي بشري حقونو اعلاميه په کومه نېټه په تصويب ورسېده او څو مادې لري؟ د اسلامي بشري حقونو اعلاميه د ١٤١١ هـ. ق. د محرم الحرام په څوارلسم د ١٩٩٠ م. کال د آګست په پنځلسم د ١٣٦٩ هـ.ش. کال د اسد مياشتي په ١٥ د اسلامي کنفرانس د سازمان د بهرنيو چارو وزيرانو په غونډه کې چې په قاهره کې جوړه شوې وه، په تصويب ورسېده. د اسلامي بشري حقونو اعلاميه ٢٥ مادې لري، د دې حقونو بشري مفهوم په دوو مهمو اصلونو ولاړ دی. د خلکو انساني کرامت او عدالت.

اسلام تل په دې ټکي ټينګار کوي چې خدای ﷻ په ټولو انسانانو فضل کړی دی او د کرامت نه يې برخمن کړي دي. د يادولو وړ ده، هغه څه چې په لوېديځ کې د بشر بنسټيز حقونه بولي د اسلام په سپېڅلي دين کې له هماغه لومړي پيل نه دا حقونه د بشريت لپاره په رسميت پېژندلي او ټينګار يې پرې کړی دی. له دې جملې کولای شو لاندې برخو ته اشاره وکړو:

• د ژوند حق، له دې جملې نه د جنينو د ژوند حق، د مالکيت او د اموالو څخه د ملاتړ حق، د کرامت حق او د انساني کرامت نه ملاتړ، له قانوني لارو څخه عدالت ته د رسېدو حق، د عقيدې د آزادۍ حق او د عقيدې د څرګندولو حق، د مساوات او برابرۍ حق، له اقتصادي امنيت نه د برخمن کېدو حق، د تشکيلاتو او ټولنو د جوړولو حق، د سياسي ګډون حق، د مهاجرت او استوګنې حق، له عادلانه اجورې څخه د برخمن کېدو حق، د کار حق او نور.

**فعالیت**: له خپلې ډلې سره خبرې وکړئ. د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه د اسلامي بشري حقونو له اعلامیې سره پرتله کړئ او د هغه پایله په څو کرښو کې ولیکئ.

## د لوست تکرار

- ..........
- ..........
- ..........
- ..........
- ..........

## پوښتنې

۱- اعلامیه څه شی ده؟ څو بېلګې یې ولیکئ.

۲- د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې د اهمیت په اړه څو کرښې ولیکئ.

۳- د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې اوه حقونه بیان کړئ.

٤- کوم موضوعات د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې په مدني حقونو کې شامل دي؟

٥- د بشر د حقونو اسلامي اعلامیه په کومه نېټه په قاهره کې د اسلامي کنفرانس د سازمان د بهرنیو چارو وزیرانو په غونډه کې په تصویب ورسېده؟

الف: ١٤ محرم ١٤١٠ ب: ١٤محرم ١٤١١ ج: ١٣ شعبان ١٤١٣ د: ١٥ سفر ١٤١٥

## کورنۍ دنده

د بشر د حقونو د نړیوالې اعلامیې د فرهنګي حقونو څو مادې چې زموږ د هېواد په قانون کې شاملې دي، ولیکئ.

# د افغانستان د بشري حقونو خپلواک کمېسیون

په تېرلوست کې موولوستل چې د بشري حقونو نړیواله اعلامیه د ۱۹٤۸م کال د دسامبر په لسمه نېټه د پاریس د شایلو په ماڼۍ کې د ملګرو ملتونو د عمومي غونډې په یوسلو درې اتیایمه غونډه کې لاس لیک شوه. په دې لوست کې د افغانستان د بشر د حقونو د خپلواک کمیسیون سره آشنا کېږئ.

## بحث پرې وکړئ

کوم عوامل د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون د جوړېدو لامل شول؟

مخکې له دې چې د افغانستان د بشري حقونو د کمیسیون دجوړېدو لاملونه څرګند کړو باید د کمېسیون په معنا پوه شو. آیا پوهېږئ چې کمېسیون څه شی دی؟ هغه غونډه چې د یوې طرحې یا مسئلې د څېړنې په هکله جوړه شوې وي او یا یو هیئت ته چې د کوم کار د اجرا لپاره دنده ورکړل شوې وي، کمیسیون ورته ویل کېږي. لکه: دافغانستان د بشر د حقونو خپلواک کمیسیون، د اداري سمون کمیسیون او داسې نور.




د افغانستان د بشري حقونو خپلواک کمیسیون د یوه ضروري امر په توګه له بل هر وخت نه زیات زموږ ټولنې ته اړین و. څکه د انساني حقونو نه تأمینېدلو او د هغه پر له پسې تر پښولاندې کولو زموږ د خلکو پام له هر بل وخت نه زیات د بشر د حقونو اهمیت ته اړولی دی. په ځانګړې توګه اضافه له دریو لسیزو جګړو او نا امنیو په ترڅ کې زموږ خلکو ډېر زیانونه ولیدل. چې عمومي روحیې ته یې زیان ورساوه. زموږ خلک په دې نه وو قادر چې له خپلو حقونونه دفاع وکړي او له فطري او طبیعي حقونو نه محروم وو؛ چور، چپاول او زورواکي د ژوند پر ټولو چارو واکمن وو؛ د قانون د احکامو پلي کېدل ناشوني وو؛ د ذکر شویو عواملو په بنا، د خلکو د هڅواو د نړیوالو مرستو او ملاتړ د پاریس د اصولنامې په پام کې نیولو سره، د ملګرو ملتونو د عمومي غونډې د(۱۹۹۳م. کال د دسامبر د میاشتې د ۲۰ ) نېټې قطعنامه، په افغانستان کې د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون جوړول د بن په موافقت نامه کې ترغور لاندې ونیول شول.

د (۱۳۸۱ لمریز کال). دا کمیسیون د دوو کلونو لپاره په رسمي توګه تأسیس شو چې وروسته دا

کمیسیون د یو ملي، خپلواک او دایمي بنسټ په توګه د افغانستان د اساسي قانون په ۵۸ ماده کې داخل شو. داکمیسیون ۹ غړي لري چې ښځې او نارینه په کې شامل دي چې د پنځو کلونو لپاره د رئیس جمهور له خوا ټاکل شوي دي او د افغانستان اسلامي جمهوریت په چوکاټ کې په خپلواکه توګه عمل کوي. د خپلو فعالیتونو په ترخ کې د اساسي قانون او د نورو ټولو نافذه قوانینو مطابق عمل کوي؛ د افغانستان د بشر د حقونو د خپلواک کمیسیون سیمه ییز دفترونه په لاندې ډول دي: د کابل، مزارشریف، هرات، کندوز، کندهار،ګردیز، جلال آباد، بدخشان، فاریاب، دایکنډي، غور او هلمند سیمه ییز دفترونه.

**فعالیت**: د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون د جوړېدو دلیلونه په خو کرښو کې ولیکئ.

## د افغانستان د بشري حقونو خپلواک کمیسیون د کومو موخو د سرته رسېدو لپاره فعالیت کوي؟

داکمیسیون د لاندې موخو د تحقق لپاره فعالیت کوي:

په هېواد کې د بشر د حقونو د رعایتولو څارل، له بشري حقونو نه ملاتړ او تعمیمول د بشري آزادیو، د بشر حقونو ته د خلکو لاس رسي د څرنګوالی او وضعیت څارل، د بشر د حقونو تر پښو لاندې کولو او سر غړونو نه څېړنه او تحقیق، د بشر د حقونو د وضعیت د ښه والي او پرمختیا لپاره د تدبیرونو نیول دي.

## د افغانستان د بشر ي حقونو له کمیسیون سره کوم ارګانونه باید مرسته وکړي؟

عدلي او قضایي اورګانونه، وزارتونه، ادارات او دولتي او غیر دولتي مؤسسات او نور ټول د هېواد اتباع دنده لري چې د افغانستان د بشر د حقونو د خپلواک کمیسیون د موخو په عملي کولو کې مرسته او هڅه وکړي چې ذکر شوي موخې سرته ورسېږي.

**فعالیت**: له خپل ګروپ سره خبرې وکړئ، که چېرته عدلي او قضایي ارګانونه د افغانستان د بشر د حقونو له خپلواک کمیسیون سره مرسته او همکاري ونه کړي، آیا داکمیسیون به خپلو موخو ته ورسېږي؟

## د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون له ځینو دندو او صلاحیتونو سره آشنا شئ

۱- د بشر د حقونو د وضعیت څارل.

۲- د بشر د حقونو په اړوند د اساسي قانون د احکامو او د نورو ټولو قوانینو، مقرراتو، لایحو او ژمنو له پلي کېدو څخه څارنه.

۳- د هېواد د اداري، قضایي، عدلي، انتفاعي او غیر انتفاعي بنسټونو او مؤسسو څارنه چې د بشري حقونو پر وضعیت باندې اغېز لري.

٤- بشري حقونو او آزادۍ ته د خلکو د لاس رسي په څرنګوالي باندې څارنه.

۵- د هغو سیمو لیدنه چې آزادۍ یې سلب شوې وي او د اړوندو قوانینو په تطبیق کې د بندیانو او محجوزینو سره د رفتار او چلند څارنه.

۶- د سرغړونو او د بشري حقونو د پښو لاندې کولو څېړنه.

**فعالیت**: له دې نه سربېره نور کوم مطالب د بشر د حقونو د کمیسیون په صلاحیتونو کې شامل دي؟

## د بشري حقونو ماتول (نقض) څه شی دي؟

هر هغه عمل چې د فرد، یوې ډلې یا د قانون پلي کوونکي له خوا د بشري حقونو د ملي او نړېوالو قوانینو د نقض لامل شي، د بشري حقونو (نقض) یا ماتول نومېږي. که څه هم دا کار د دولت دیو مامور له خوا د دندې په وخت کې شوی وي او یا د نورو حقوقي اشخاصو یا حقیقي اشخاصو له خوا په قصدي توګه شوی وي.

## د بشري حقونو تر پښو لاندې کولو مهم موضوعات کوم دي؟

د بشري حقونو د نقض مهم موضوعات عبارت دي له: د ژوند ختمول، ډله ییزه وژنه، غیر قانوني بندي کول، وهل او ټکول، جنسي تېری، د آزادۍ ختمول یا سلبول، د ملکیت په زور نیول، نژادي تبعیض، جنګي جنایتونه، په زور واده کول، ځورول او شکنجه، د خلکو تښتول ( اختطاف) د ژوند د چاپېریال ککړول، غیرعادلانه محاکمه، د تورن له دفاع نه ممانعت کول. په محکمو کې هغه کسان چې د هغوی حقونه د نورو په پرتله ډېر تر پښو لاندې کېږي عبارت دي له: جنګي اسیران، بندیان، یتیمان، کونډې ښځې، بې کوره بېرته راستانه شوي مهاجرین ، داخلي بې ځایه شوي، معلولان، متقاعدین، اقلیتونه او نور.

## آیا پوهېږئ کومې ستونزې او حل لارې د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون په وړاندې پرتې دي؟

هغه ستونزې چې د افغانستان د بشر د حقونو دکمیسیون په وړاندې موجودې دي عبارت دي له: د ناپوهۍ، د بې سوادۍ پراخوالی، اخلاقي کمزوري، اداري فساد، د تاو تریخوالي د فرهنګ دوام، د پوهانو او علماوو فرهنګي او فکري پانګې ته نه پاملرنه، د حساب نه ورکولو او معافیت روحیه او داسې نور. د حقونو د لاس ته راوړلو ښې لارې په لاندې ډول دي: د علماوو او ټولنپوهانو له رول څخه په ټولنه کې د بشر د حقونو د مسایلو د درک او تحلیل په برخه کې ګټه اخیستل. خلکو ته د کمیسیون د ورپېژندلو په اړه د ورکشاپونو دایرول، پولیسو، امنیتي ارګانونو، څارنوالیو او محاکمو ته د بشر د حقونو د تر پښو لاندې کولو د مخنیوي په مقصد د ښوونیزو او روزنیزو او حقوقي ورکشاپونو پرانیستل، په تحصیلي، ښوونیزو، روزنیزو مرکزونو کې د کمیسیون د اړیکو وده او ټینګښت، د ښځو دچارو له وزارت سره د حقوقي پوهېدنې په خاطر د ورکشاپونو دایرول.

**فعالیت**: د افغانستان د بشري حقونو دکمیسیون د کار او فعالیت مثبت او منفي ټکې په څو کرښو کې ولیکئ.



### د لوست تکرار

•..............................................................

•..............................................................

•..............................................................



### پوښتنې

۱- کمیسیون تعریف کړئ.

۲- د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون موخې ولیکئ.

۳- د افغانستان د بشري حقونو د خپلواک کمیسیون پنځه صلاحیتونه بیان کړئ.

٤- د بشر د حقونو (نقض) یا تر پښو لاندې کول څه شی دي؟

۵- ستاسې په فکر څه باید وکړو چې د بشر د حقونو له ماتولو څخه مخنیوی وشي؟



### کورنی دنده

د بشر د حقونو د ماتولو څو بېلګې چې کېدای شي د راډیو او ټلویزیون له لارې مو اورېدلې او لیدلې وي په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.

## د ښېرکي لنډیز

• حقوق د حق جمع ده، د حق کلمه په لغت کې د درست، ثابت، عدل، وړ او لایق، په یوه شي کې تصرف کول، حلال، په یوه شي باندې تسلط درلودل، برخه او ګټه او د خدای (جَلَّ جَلالُهُ) د نومونو څخه یو نوم دی.

• د بشر حقونه له ټولو حقونو څخه لکه: ذاتي حقونه چې انسان ته د زېږېدو له ورځې وړ په برخه کېږي او هم کسبي حقونه چې ټولنه یې انسان ته په ورکړه قایله وي.

• د بشر د حقونو نړیواله اعلامیه په حقیقت کې د دیني زده کړو، اخلاقو، عقایدو او نظریو لنډیز او بشپړوونکې ټولګه ده چې پېړۍ پېړۍ د مخه د بشر د حقونو د خوندیتوب او نیکمرغۍ لپاره منځ ته راغلې ده.

• د بشري حقونو د اسلامي کنفرانس اعلامیه چې د محرم په ۱۴ نېټه ۱۴۱۱ قمري کال د ۱۹۹۰ م. کال د اګست د ۱۹ مې او د ۱۳۲۹ لمریز کال د زمري د میاشتې ۱۵ مې نېټې سره سمون خوري د بهرنیو چارو وزیرانو د اسلامي کنفرانس په سازمان کې په ۲۵ مادو کې په قاهره کې تصویب شوه.

• د افغانستان د بشري حقونو خپلواک کمیسیون د ۱۳۸۱ لمریز کال د غبرګولې په ۱۲ نېټه د جمهور رییس له فرمان سره سم تشکیل او د یوه ملي بنسټ په توګه د نوي اساسي قانون په ۵۸ مه ماده کې تسجیل شو.

# دموکراسي (ولسواکي)

په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:

- د دموکراسۍ مخینه (تاریخچه)
- د دموکراسۍ مفهوم او ډولونه
- د موکراسي په افغانستان کې

## د خپرکي موخې

د دې خپرکي په لوستلو سره په لاندې پوهنيزو او مهارتي موخو ته ورسيږي:

- د دموکراسۍ له تعريف او مفهوم سره به آشنا شي.
- د دموکراسۍ په مخينې (تاريخچې) به پوه شي.
- د دموکراسۍ په مفهوم او په نړۍ کې د هغې په ډولونو به پوه شي.
- د هيواد د نظام په پرگنيزتوب به پوه شي.
- دموکراسي به تعريف او تشريح کړای شي.
- د دموکراسۍ مخينه به توضيح کړای شي.
- د دموکراسۍ ډولونه به و ښودلی شي.
- پرگنيز نظامونه او زورواکي نظامونه به توپير کړای شي.
- د هيواد د پرگنيزتوب نښې او بېلگې به وښودلی شي.

# د دموکراسۍ تعریف او ماهیت

## بحث پرې وکړئ

د اوسنيو دولتونو د پراختيا يوه له مهمو برخو څخه له خلکو سره د هغوی اړيکې دي. تاسې به د دموکراسۍ اصطلاح له کتابونو او ټولنيزو رسنيو څخه اورېدلې وي.



آيا فکر مو کړی چې دموکراسي څه شی ده؟

او په اصطلاح کې کومه معنا لري؟

دموکراسۍ کوم تاريخي پړاو وهلی دی؟

## د دموکراسۍ تعريف

**الف**: په لغت کې د دموکراسي کلمه (Domocracy) چې په پښتو ژبه کې ورته ولسواکي ويل کېږي، د يوناني ژبې(Demokratia) څخه اخيستل شوې ده، د يوناني ژبې دغه لفظ په خپله د Demos (خلک) او Kretein حکومت کولو څخه ترکيب شوی دی، دا ډول دموکراسي د ژبې له نظره:( د خلکو حکومت د خلکو له خوا) معنا ورکوي.

**ب**: په اصطلاح کې: د ټولنې د خلکو د ژوندانه د هغه ډول څخه عبارت ده چې په هغه کې خلکو ته د دې حق ورکول کېږي چې آزادانه مشارکت لپاره د مساوي امکاناتو څخه برخمن وي. په دموکراسۍ کې خلکو ته د دې امکان برابرېږي چې د دموکراسۍ له لارې د هېواد په سياسي پرېکړو کې په خپلواک ډول برخه واخلي او د چارو په پرمخ بيولو او په حکومت باندې د نظارت کولو له لارې له خپلې ارادې څخه ګټه واخلي.

## د دموکراسۍ تاریخي لرغونتوب

### ۱- په یونان کې د دموکراسۍ منځ ته راتلل

د دموکراسۍ د منځ ته راتلو لومړنۍ دوره په لرغوني یونان کې د میلاد نه د مخه پنځمه پېړۍ کې پیل شوې ده. په هغه ځای کې د مریيانو او ښځو پرته نورو ټولو د حکومت په چارو او د قوانینو په وضع کولو کې مستقیماً ګډون درلود. د یونان دموکراسي په دریو اصولو: د آزادۍ، برابرۍ او د تصمیم نیول د هېوادوالو د اکثریت پربنسټ ولاړه وه. دغه اصطلاح د لومړي ځل لپاره د کلستین له خوا په آتن کې وکارول شوه او هغه د دموکراسۍ بنسټ ایښودونکی وپېژندل شو.

**فعالیت**:د ډلو د غړو په مشورې سره د یونان د دموکراسۍ منفي او مثبتې نښې په ګوته کړئ.

### ۲- په روم کې د دموکراسۍ منځ ته راتلل

په روم کې دموکراسي د جمهوري نظام په چوکاټ کې را څرګنده شوه. د روم د تاریخ لیکونکي پولیب یوناني لیکوال د لیکنو پر بنیاد د هغه هېواد جمهوري نظام له دریو عنصرو شاهي( کنسول) اشرافي (سنا) او د ولسواکۍ (د خلکو د مجلسونو) نه جوړ شوی و. په پای کې قدرت د سنا ( اشرافیانو) لاس ته ورغی. د سنا غړي به تل د خلکو له خوا ټاکل کېدل، له دې امله سنا خپله ولسي منشأ درلودله. خو په سنا کې غړیتوب په څو محدودو شتمنو او ځواکمنو کورنیو پورې اړه درلوده. همدارنګه سنا د میلاد نه مخکې لومړۍ پېړۍ پورې قدرت په لاس کې درلود. په دې دوره کې ولسي مجلسونو زیات نفوذ پیدا کړ او قضایي محکمې د خلکو د حقوقو د مدافع په توګه پرانېستل شوې.

## د دموکراسۍ حرکت له دولسمې میلادي پېړۍ څخه تر اوسه پورې

د روم د جمهوریت له ړنګېدو څخه وروسته تر ډېرې مودې په هېڅ هېواد کې د دموکراسۍ نښې نښانې نه لیدل کېدې، ترڅو په دوولسمه میلادي پېړۍ کې د اروپا په خپلواکو ښارونو کې یو ډول دموکراسۍ رامنځ ته شوه. په انګلستان کې د دموکراسۍ لومړنۍ تخم وکرل شو. په ۱۲۱۵م. کال کې د لومړي ځل

لپاره په دې هېواد کې د ستر منشور (منشورکبیر) توشیح کېدل د ژان پاچا له خوا د دموکراسۍ لومړنۍ غوټې ولیدل شوې او هغه یې د اروپا لومړنی **اساسي قانون** او د انګلستان د ملت د آزادۍ بنسټ وباله چې ورو ورو بشپړ شو. ځینو لیکوالو د حکومت شکلونه په منځنۍ او نوې پېړۍ یعنې له یوولسمې مېلادي پېړۍ نه تر اوولسمې مېلادي پېړۍ پورې موده یې د ولسي بنسټونو لومړنۍ مخینه بللې ده. په ځانګړې توګه د ایټالیا د دولت شمالي ښارونه، لکه: فلورانس او وینز، د سویس کانفدراسیون او د هالنډ جمهوریت. په دې نظامونو کې د ولسي حاکمیت او د خلکو د استازي توب نظام په مختلفو ډولونو سرته رسېده، په داسې حال کې چې د حکومت اساس د اشرافو او د ځمکو د څښتنانو په لاس کې و. په نوې پېړۍ کې انګلیسي فیلسوف جان لاک ۱۶۳۲ – ۱۷۰٤ کې د آزادۍ د فکر او نظریې په مفهوم پیل کوي. د لاک د نظریې پر اساس، حکومت په دریو قواوو وېشل کېږي. له لاک نه وروسته په اتلسمه پېړۍ کې له یوې خوا ژان ژاک روسو (۱۷۱۲- م ۱۷۷۸م. ) او منتسکیو ( ۱٦۸۹- ۱۷۵۵) دموکراسي د دوی په نظریاتو کې نوې مرحلې ته وردننه شوه. د دې متفکرینو او فیلسوفانو له نظریاتو نه وروسته د امریکا (۱۷۷٦م) او فرانسې(۱۷۸۹م) انقلابونه او بدلونونه د دې افکارو د رواجولو لامل شول. له بلې خوا د انګلیس د ټولنې پر مختګونه چې له دیارلسمې پېړۍ نه پیل شوي وو، د څو پېړیو په ترځ کې یې ورو ورو د تجربې له لارې د نوي عصر د ډول ډول مسایلو غوټې وسپړلې. د سیاسي آزادیو مفهوم، د پارلمان جوړېدل، دوه مجلسي نظامونه، د سلطنتي مطلقه واک محدودول، د خلکو د استازیو په وړاندې د وزیرانو د مسؤولیت ایجادول او د حکومت او کابینې ځای پر ځای کول، د دې ټولنې له لاسته راوړنو څخه وو چې د انګلیستان د ۱٦۸۸ م. کال په انقلاب په پایله کې بشپړ شول او د اساسي قانون په لاسلیک کېدو سره یې د دموکراسۍ په لوري لاره پیدا کړه.

**فعالیت**: په نوې پېړۍ کې کوم اصول د دموکراسۍ د ځای پر ځای کولو لپاره منځ ته راغلل؟



## د لوست تکرار

- ........................................................................................................
- ........................................................................................................
- ........................................................................................................
- ........................................................................................................
- ........................................................................................................
- ........................................................................................................



## پوښتنې

۱- د دموکراسۍ مفهوم په اصطلاح کې څرګند کړئ.

۲- د دموکراسۍ لغت د لومړي ځل لپاره د چا له خوا وکارول شو؟

۳- په روم کې د دموکراسۍ تحول یا اوښتون بیان کړئ.

٤- د دموکراسۍ غوره متفکران څوک دي؟

٥- د فرانسې د انقلاب نه وروسته د دموکراسۍ تر ټولو غوره شعارونه څه شی وو؟



## کورنۍ دنده

د دموکراسۍ د زمینه سازیو په اړه یوه مقاله ولیکئ.

# د دموکراسۍ موخې، اصول او وسیلې



## بحث پرې وکړئ

په تېر لوست کې مو د دموکراسۍ د تعریف او تاریخچې په هکله معلومات تر لاسه کړل. په دې لوست کې د دموکراسۍ د موخو، اصولو او لوازمو سره بلدېږئ، دموکراسي د خلکو له خوا په خلکو باندې د حکومت کولو په معنا تعریف شوې ده، ستاسې په نظر:

۱- آیا په دې تعریف باندې ټول پوهان د نظر یووالی لري؟

۲- ستاسې خپل نظر په دې اړه څه شی دی؟

د دې سره سره چې د دموکراسۍ په اړوند د نظر بشپړ یووالی وجود نه لري او دغه د بشپړ نظر د یووالی نه موجودیت په د موکراتیکو ټولنو کې د هغوی د ټولنیز شکل د پیچلتیا او رنګ رنګ والی لامل ګرځېدلی دی او هرې ټولنې هغه د خپل نړۍ لید او خپلې سیاسي ایدیولوژۍ سره سم تعریف کړې دی، بیا هم کولای شو چې د هغې موخې او بنسټیز اصول په لاندې ټکو کې په لنډ ډول بیان کړو:

## الف: د دموکراسۍ موخې

دموکراسي د دوو مهمو موخو د تر سره کولو لپاره هڅه کوي:

۱- سیاسي دموکراسي (د خلکو حکومت) او ټولنیزه دموکراسي (حکومت د خلکو لپاره) منځته راوړل.

۲- د خلکو لپاره د حقونو او آزادیو برابرول.

## ب: د دموکراسۍ بنسټیز اصول

د دموکراسۍ بنسټیز اصول او عناصر کولای شو په لاندې ټکو کې خلاصه کړو:

**۱- د قانون په وړاندې برابري**: دا په دې معنا ده چې د قانون د عملي کېدو په اړوند ټول خلک سره برابر دي او د ټولنې هېڅ فرد د بل څخه کوم امتیاز نه لري.

**۲- د قضا په وړاندې برابري**: دا په دې معنا ده چې د ټولنو د وګړو په منځ کې د قضا، محکمې او قضایي سزاګانو په وړاندې توپیر وجود نه لري.

**۳- د یوه شي څخه په برخمن کېدو او له آسانتیاوو او امکاناتو څخه په ګټو اخیستلو کې برابري**:

باید ټول هېوادوال د ژوندانه له مختلفو اسانتیاوو او امکاناتو څخه لکه: اقتصاد، زده کړه او دولتي منصبونو په لاسته راوړلو کې په مساوي توګه برخمن وي.

**۴- په عمومي مکلفیتونو کې، لکه**: د عسکرۍ خدمت، د ټکس ورکول، غرامت (تاوان ورکول) او داسې نورو کې برابري.

**۵- آزادي، لکه**: د بیان کولو، د لیکلو، د غونډو جوړولو، د ټولنیزو سازمانونو او د سیاسي ګوندونو جوړولوآزادي.

**۶- ټولنیزه قبلونه**: د حکومت څخه په متابعت کولو کې د هېوادوالو رضایت، د دموکراسۍ د اساسي اصولو په معنا دی. په دموکراسي نظام کې، هر حکومت خپل مشروعیت د ټولیزې رایې څخه لاسته راوړي.

**۷- عمومي مشارکت**: د تصمیم نیولو او تصمیم جوړولو په بهیر باندې د یوه ځانګړي ګروپ او یا فکر دخاوندانو د برې او انحصاري کولو د مخنیوي په خاطر، د استازو په ټاکلو کې د خلکو مشارکت ته ویل کېږي.

۸- **د خلکو حاکمیت( د ډېرکیو حاکمیت)**: د خلکو حاکمیت د دموکراسۍ د بنسټیزو اصولو څخه دی. د خلکو حاکمیت د نیمایي جمع یو د حاکمیت په معنا دی.

۹- **هېواد والي(تابیعت)**: هېوادوال هغه چا ته ویل کېږي چې د یوه دولت سره په اړیکه درلودو کې په پام کې نیول کېږي. له یوې خوا د مدني حقونو څخه برخمن وي او له بلې خوا د دولت په وړاندې د دندو په ترسره کولو مکلف وي.

۱۰- **د استازیتوب سیستم**: د استازو هیأت باید د قانونګذارۍ، د مالیاتو په هکله د رایې ورکولو، پر بودجه باندې د نظارت کولو او د استیضاح او د دولت د تصمیمونو په هکله د پوښتنې حق ولري.

۱۱- **د ځینو ټاکلو شرطونو شته والی، لکه**:د مناسب اساسي قانون شته والی، د قواوو جلاوالی، پر یوه بل باندې د قواوو نظارت او څارنه، ټاکنې او په دولتي چارو کې شفافیت.

## ج: د دموکراسۍ امکانات او ضرورتونه

د دموکراسۍ د تحقق لپاره د د موکراتیک شخصیت ځانګړتیاوې:

۱- تجربه کول او د خطا او آزمایښت له طریقې څخه کار اخیستنه.

۲- چاروا کو ته په انتقادي نظر کتل.

۳- انعطاف منل: په یوه کار کې له ځانه نرمي ښودل.

٤- واقعیت غوښتنه، واقعیت منـنه او واقعیت بیانول.

۵- زغم او حوصله.

٦- نرمي او خوشامندي.

۷- په ډله ییز څواک باندې باور درلودل.

۸- پوهېدنه او مسؤولیت منـنه.

۹- د پرمخ تللي مدنیت موجودیت.

هغه هېوادونه چې د دموکراسۍ پلي کول پرځان لازم بولي، ښایي د دموکراتیک فرهنګ هدفونه،

اصول او د رامنځته کېدو او پراختیا شرایط یې رامنځ ته کړي وي. که نه، نو یوازې په تشو خبرو او شعارونو دموکراسي نه رامنځ ته کېږي. ځینې لوېدیځ هېوادونه ځانونه د دموکراسۍ ټینګ پلویان بولي، خو په عمل کې داسې نه ده او د نورو هېوادونو دموکراتیک فرهنګ تر پښو لاندې کوي چې بېلګه یې د شلمې پېړۍ په نوي یمه لسیزه کې د ترکیې او الجزایر په دموکراتیکو ټاکنو کې دوه مخې توب یادولای شو، په دې دوو هېوادونو کې د ټاکنو پایلې باطلې اعلان شوې او الجزایر له خونړۍ ناکرارۍ سره مخامخ شو.



**د لوست تکرار**

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................



**پوښتنې**

۱- د دموکراسۍ د تعریف او اساسي ستنو په هکله د نظر د یووالي نه موجودیت څه پایلې منځ ته راوړې دي؟

۲- په دموکراتیکو نظامونو کې د خلکو لپاره باید کوم فرصتونه په پام کې ونیول شي؟

۳- تولنیز منبت څه شی دی او له عمومي مشارکت سره څه توپیر لري؟

٤- د دموکراسۍ د ځینو ضرورتونو او شرایطو نومونه واخلئ.

٥- ځینې لویدیځ هیوادونه د دموکراسۍ په تطبیق کې څومره ریښتوني دي؛ ستاسې دلیل څه شی دی؟



**کورنۍ دنده**

د دموکراسۍ له سترو هدفونو څخه یو یې شرحه کړئ او په هکله یې د اسلام نظر هم ولیکئ.

# دموکراسي په افغانستان کې

په تېر لوست کې مو د دموکراسۍ د موخو، بنسټيزو اصولو او لوازمو په اړه يو څه معلومات ترلاسه کړل. په دې درس کې به په افغانستان کې د اسلام او دموکراسۍ سره بلد شئ.

## بحث پرې وکړئ

افغانستان له خپلو ځانګړو ټولنيزو، فرهنګي او اقتصادي شرايطو او مشخصاتو سره د ولسواکۍ د پراخېدو په لاره روان دی. دلته پوښتنه پيدا کېږي چې:

- د ولسواکۍ ريښو له کومې زماني څخه را په دې خوا زموږ په هېواد کې شتون درلود؟

دموکراسي يا ولسواکي زموږ په هېواد کې د جرګو د تاريخ سره نژدې اړيکې لري چې د آرياپانو په زمانه کې پيل شوې ده لکه: د سبها او سيمتي جرګې.

سبها: هغې جرګې ته ويل کېږي چې په هغې کې پر کوچنيو سياسي مسايلو باندې بحث کېده او د هغوی د حل لارې چارې په کې څرګندېدې او همدارنګه سيمتي جرګه يا مجلس چې د (سپين ږيرو، لويانو او نجباوو) څخه جوړېده، د ژوندانه د مهمو مسئلو په هکله پرېکړې په کې کېدې. د لوی کنشکا په زمانه کې ستره مذهبي جرګه د بوداپانو د اووم لاربنود واسوميترا ګندهارا عالم تر مشرۍ لاندې جوړه شوه. دغې جرګې د (هينه يانه) پخواني مذهب ته بدلون ورکړ چې د (مهايانه) په نوي مذهب باندې بدل شو. زموږ د هېواد په تاريخ کې کولای شو چې د جرګو څرګندې نمونې پيدا کړو، لکه: د ميرويس خان نيکه د زماني جرګه، د شير سرخ د مزار جرګه، د امير شير علي خان او عبدالرحمن خان د زمانې لويې جرګې او داسې نورې چې د افغانستان په سياسي پېښو کې يې غوره ټاکونکی او مهم رول درلود. د دې جرګو شتون په خپل وار سره په هېوادنيو مسايلو کې د خلکو د ګډون لپاره لاره هواره کړې ده.

**فعاليت**: د خپلې ډلې د غړو سره له مشورې څخه وروسته د هېواد د څو جرګو نومونه وليکئ.

**آيا پوهېږئ زموږ خلکو په کومه زمانه کې په نوي تمدن او مشروط غوښتنه کې قدم کېښود؟**

زموږ په هېواد کې د نولسمې پېړۍ په پای کې د امير شير علي خان د امارت په وخت کې د معاصر مدنيت خواته ګامونه واخيستل شول. دولتي نظام تر يوې کچې په عصري نظام واوښت؛ په سياسي دستګاه کې کابينه جوړه شوه؛ سيد نور محمد شاه د لومړي صدر اعظم په حيث وټاکل شو؛ د شمس النهار جريدې په خپرولو پيل وکړ؛ د کابينې جوړول، په وزيرانو باندې د چارو تقسيم، مطبوعات او مخابراتي نظام او د چاپ خانې جوړول په خپله د يوه ښه نظام او معاصر مدنيت په لوري د حرکت سبب شول؛ دا فرهنګي او ټولنيز پر مختګ په ۱۸۷۸ م کال د انګليسانو د يرغل له مخې غلی شو. د امير حبيب الله خان په زمانه کې د هغو بدلونونو تر اغېزې لاندې چې په سيمه او نړۍ کې راغلي وو، يو لړ ټولنيزو، فرهنګي پروګرامونو د سرته رسولو لپاره د دولت له خوا ځينې اقدامات تر لاس لاندې ونيول شول.

د دې پړاو د فرهنګي او ټولنيزو مهمو کارونو څخه کولای شو د حبيبې او حربيې ښوونځيو پرانيستل، د سراج الاخبار افغانستان نشرېدل او د سراج الاخبار افغانيه نوم واخلو. د سراج الاخبار آزادۍ غوښتونکې انديښنې نه يوازې په افغانستان کې اغېزمنې وې، بلکې له هېواده بهر په هند، بريتانيا او منځنۍ آسيا کې هم اغېزمنې وې.

مشروطه غوښتونکې لومړنۍ سياسي ډله وه چې يو نهضت يې د آزادۍ غوښتنو، استقلال غوښتنې پر مترقي مرام او موخو پرانيست؛ د مشروطه غوښتونکو فکري اصول دا وو: د اسلام په مبين دين باندې عقيده، ملي يووالی، معارف ته عموميت ورکول او د مطبوعاتو پرانيستل، د آزادو او عمومي ټاکنو له لارې د ملي شورا (پارلمان) جوړېدل او د ټولنيز عدالت تأمينول.

دويم مشروطه غوښتونکو حزبي تشکيل نه درلود، خو نسبت پخوانۍ دورې ته له ډېر قدرت او امکاناتو څخه برخمن وو او خاص دليل يې دا و چې د دربار او سلطنتي کورنۍ غړي په دې نهضت کې شامل وو چې له هغې جملې کولای شو د شهزاده امان الله خان يادونه وکړو؛ د لومړيو مشروطه غوښتونکو او دويمو مشروطه غوښتونکو د موخو تر منځ ډېر توپير موجود نه و؛ دوی هم د قانون حاکميت او د مشروطه نظام غوښتنه کوله.

امير حبيب الله خان په ۱۹۱۹ م کال د کله ګوش په ښکار ځای کې په قتل ورسېد او زوی يې شهزاده امان الله خان سلطنت ته ورسېد؛ د شاه امان الله خان لومړنی مهم اقدام د اقتصادي او ټولنيزو اصلاحاتو په اړه د هېواد د خپلواکۍ اعلان و؛ د هغې دورې د اصلاحاتو نه کولای شو له نورو يا بهرنيو هېوادونو سره د سياسي اړيکو پراختيا، د مريي توب له منځه وړل، د نجونو او هلکانو د ښوونځيو پرانېستل، په ټول هېواد کې د قانوني بنسټ جوړول او نافذول چې (د افغانستان د عاليه دولت اساسي نظامنامه) نومېده او د نورو ټولو قوانينو، نظامنامو او ټولو اقتصادي، اجتماعي او فرهنګي اصلاحاتو نوم واخلو.

د امان الله خان د نظام د ړنګېدو څخه وروسته افغانستان تر ۱۳۴۰ لمريز کال پورې د ظلم او مخالفتونو د اور په بټۍ کې د سوځېدو په پايله کې خپله خپلواکي له لاسه ورکړه او هېواد په دې دوران کې د وروسته پاتې والي او پر شاتګ دورې څخه تېرېده.

## په هېواد کې د دموکراسۍ د لسيزې په اړه څه پوهېږئ؟

کله چې له دويمې نړيوالې جګړې نه وروسته د بشر د حقونو نړيواله اعلاميه د ډېرو هېوادونو د منل شوي سند په توګه د ملګرو ملتونو له خوا د هغه غړو هېوادو ته اعلان شوه، زموږ په هېواد کې د هغه څخه د اغېزمن کېدو په پايله کې محمد ظاهر شاه د خپل سلطنت په آخره لسيزه ۱۳۴۳ هـ. ش. کال کې اساسي قانون توشيح کړ؛ د ۱۳۴۳ هـ. ش. اساسي قانون کې پارلماني ټاکنې په رسميت و پېژندل شوې؛ صدارت د شاهي کورنۍ له ولکې نه ووت او د ښځو موقف په ټولنه کې ښه شو؛ د اساسي قانون د احکامو په رڼا کې د ټاکنو قانون وضع شو؛ پارلماني ټاکنې ترسره شوې؛ د ۱۳۴۳ هـ. ش. کال

اساسي قانون کې د پارلماني ټاکنو د ولسواکۍ معیارونه سجل او د وخت له شرایطو سره سم ټاکل شوی پارلمان تشکیل شو؛ په دې پړاو کې د خلکو د پرګنو په منځ کې د ولسواکۍ د روحيې په خپرېدو سره په سیاسي او ټولنیزو چارو کې د خلکو مینه او برخه اخیستنه زیاته شوه؛ د سیاسي ګوندونو د تشکیل لپاره لاره هواره شوه؛ د اساسي قانون د ۳۲ مادې له حکم سره سم ګوندونو د جوړېدو اجازه ترلاسه کړه؛ د سیاسي ګوندونو د جوړېدو څخه وروسته، سلطنتي نظام خپل ځان له خطر سره مخامخ ولیده، نو ځکه یې د سیاسي ګوندونو پر وړاندې خنډونه جوړول، ترڅو په ۱۳۵۲ کال کې محمد داوود خان کودتا وکړه؛ شاهي رژیم یې رنګ او جمهوریت یې اعلان کړ؛ هغه نیم بنده ولسواکي چې یوه لسیزه یې دوام وکړ، له منځه یووړه او لومړنی جمهوري نظام یې منځ ته راوړ.

د محمد داوود خان د واکمنۍ په زمانه کې هم د آزادۍ مخه ونیول شوه او دموکراسۍ وجود نه درلود.

پس له هغې چې د محمد داوود خان رژیم د خلق او پرچم دګوندونو له خوا راوپرځول شو، دلته هم په عمل کې د دموکراسۍ او د هغې د اصولو څه نښه نه وه. په هېواد باندې د پخواني شوروي اتحاد د تېري په پایله کې، د جګړې تنور لا پسې ګرم شو او دموکراسي د هغې د اصولو سره یو ځای د اوسني دولت تر جوړېدو پورې له هېواد څخه کډه وکړه.

**فعالیت**:د محمد ظاهر شاه په زمانه کې کوم لاملونه په سیاسي او ټولنیزو چارو کې د خلکو د ونډې اخیستو سبب وګرځېدل؟

## آیا پوهېږئ د بُن له پرېکړې نه وروسته زموږ په هېواد کې د ولسواکۍ په برخه کې کوم بدلونونه منځ ته راغلل؟

پس له هغې چې د افغانستان ځینې سیاسي جریانونه د ۱۳۸۰ لمریز کال د لیندۍ د میاشتې په ۶ مه د هېواد د لانجې لپاره د حل لارو د پیدا کېدلو په خاطر د آلمان د بن په ښار کې سره را غونډ شول او یوه توافقنامه یې لاسلیك کړه، بېړنۍ لویه جرګه دایره شوه انتقالي حکومت تشکیل شو او پس له هغې د هېواد اساسي قانون تصویب شو چې د هغې پر اساس د دموکراسۍ ځینې بنسټیز اصول منځ ته راغلل او عملي شول او د هېواد خلکو دا لاندې آزادۍ لاسته راوړې.

- د هېواد او یا د پارلمان د رهبرۍ لپاره په خپله خوښه د ځان نوماندول.
- د رایې ورکولو حق، په آزاده، پټه او عمومي توګه.
- له قانون سره سم د سیاسي ګوندونو، انجمنونو او اتحادیو د تشکیلولو حق.
- له قانون سره سم د فکر، بیان، د فرهنګي، سیاسي او اجتماعي فعالیتونو حق.
- د هېواد په ټولو ژبو د مطبوعاتو او ډله ییزو رسنیو د نشر اجازه.
- د افغانستان د خلکو تر منځه د هر ډول تبعیض مخنیوی.
- د هېواد خلك د خپلو روا مقصدونو د پوره کولو لپاره کولای شي چې له قانون سره سم سوله ییز لاریونونه وکړي، په لاریونونو او غونډو کې ګډون وکړي.

• پارلمان له دېرې مودې وروسته بيا په فعاليت پيل وکړ.
لکه څرنگه چې د مخه وويل شول: له دموکراسۍ څخه د مختلفو هېوادونو په منځ کې ډول ډول تعبيرونه کېږي، خو موږ افغانان د يوه مسلمان ملت په توگه، په خپلو ټولو چاروکې د اسلام سپېڅلي دين پيروان يو؛ نو د دغه فهم په پام کې نيولو سره د دموکراسۍ څخه زموږ موخه او يا تاييد که چېرې په ځينو يادو شوو مواردو کې صورت نيولی وي دا ده چې خلك وکړای شي، په خپلو سياسي چارو کې په آزاده توگه برخه واخلي؛ خپل استازي د ورتيا او ايمانداری پر بنسټ وټاکي؛ مراقبت او څارنه يې وکړي او لرې يې کړای شي او هغو ته په هغو کارونو کې د عمل کولو صلاحيت ورکړي چې اسلام د هغو تر سره کول د ملت په اوږو ايښي دي. البته له دموکراسۍ څخه دا رنگه تعبير د اسلام د اصولو سره ضديت نه لري.
**فعاليت**: ستاسې په فکر، له پورتنيو موضوعگانو پرته زموږ خلك نور څه حقوق لري؟ بيان يې کړئ.
## اسلام او دموکراسي
اوس دا پوښتنه پيداکېږي چې د خپل سياسي برخليك سره د خلکو د اړيکو په اړه د اسلام نظر څه شی دی؟
اسلام د الله ﷻ د وروستني دين او د ژوند د يوه کره، پوره او هر اړخيز دين په توگه، د ټولنې د سياسي نظام په اړه په دوواصلونو ولاړ دی:
۱- د مطلق يا بشپړحاکميت او د قانون جوړولو حق يوازې الله ﷻ پورې اړه لري؛ هېڅ مسلمان دا جواز نه لري چې له هغو فرايضو او محرماتو نه چې په اسلامي شريعت کې بيان شوي دي، سرغړونه وکړي. ټول خلك که دېره کي او که لږه کي دي بايد د الله ﷻ قوانينو ته غاړه کېږدي.
اجتهادي موضوعات چې د مصلحت په بنسټ ولاړ دي او د حالاتو او وخت د بدلون له امله پرمختگ کوي، د قانون جوړولو کار په هغه کې، امت ته پرېښودل شوی او مسلمانانو ته دنده ورکړ شوې ده چې په خپلو کې له مشورې وروسته او د قطعي احکامو او د دين د اصولو په نظر کې نيولو سره چې د قرآن او سنت له خوا توضيح شوي دي، د هغو په اړه تصميم ونيسي.
۲- خلافت په خلکو پورې اړه لري، الله ﷻ په قرآن او سنت کې کوم ځانگړی قوم نه دی گمارلی چې د مسلمانانو سياسي چارې او سياسي ځواك پر مخ بوځي او نورو ته دا کار حرام وي؛ بلکې د ﴿ **وَ اَمرُهُم شوری بَينَهُم**﴾ ( الشوری: ۳۸ ) د لارښونې له مخې يې پر مسلمانانو دا لازم کړې دي چې خپلې ټولې چارې او په ځانگړې توگه سياسي چارې په خپلو کې په مشورې سره پرمخ بوځي.
الله ﷻ انسانان د ځمکې پر مخ د خپلو خليفه گانو په توگه منځ ته راوړي چې د خدای(جَلَّ جَلاَلُه) ځمکه د ښېتن تعالی له رضا سره سمه آباده کړي؛ او په سياسي چاروکې دوی ته لازمه ده چې د تقوا او ورتيا له مخې خپل سياسي استازي وټاکي؛څارنه ترې وکړي او که لازمه وي له دندې نه يې گوښه

کړي او هغه چارې چې د ټولو خلکو برخليک پورې اړه لري، هغوی ټول بايد د دې چارو په تصميم نيولو او سرته رسولو کې په شونې او معقوله توګه سره شريک واوسي.
دا اصول د الله جل جلاله د پيغمبر صلی الله علیه وسلم په سياسي ژوند کې په روښانه توګه ليدل کېږي؛ ابو هريره رضی الله عنه روايت کوي: له خپلو يارانو سره په مشوره کولو کې د الله جل جلاله د رسول صلی الله علیه وسلم څخه پورته بل څوک ما ونه ليدل.
**فعاليت**: زده کوونکي دې د غزاګانو او د سياسي چارو په وخت کې اصحابو سره د الله جل جلاله د رسول حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د سلا او مشورو په اړه خبرې اترې وکړي.
د ستر پيغمبر صلی الله علیه وسلم له رحلت نه وروسته د سلامشورې او په سياسي چارو کې د خلکو د ګډون اصل د خلفای راشدين (حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان او حضرت علي رضی الله عنهم ) په زمانه کې په کوم ډول چې د پيغمبر صلی الله علیه وسلم له خوا انځور شوی و، دوام وموند،خو وروسته له دې چې خلافت په پاچاهی بدل شو، د اسلام تاريخ د خلکو د سياسي حقونو او د لوړو ژورو په اړه بحث کوي؛ ډېر وختونه سياسي چارې د خلکو د نظر او سلا مشورې پرځای د کورنۍ د ګټو او د شاهي کورنۍ د سلطې د ساتلو په بنسټ حل او فصل کېدلې.
هغه څه چې نن ورځ د دموکراسۍ ارزښتونه بلل کېږي، لکه: د انسان د حقونو رعايت کول، آزادۍ، سياسي ګډون، قانون ته درناوی، عدالت او مساوات، د خلکو حقوق، د استازيتوب سيستم، د قواوو تفکيک او په خپلوکې د يو او بل نه څارنه کول، د چارو په اجرا څارنه کول او د دولت د تصميمونو استيضاح او پوښتنه کول، هغه څه دي چې د اسلامي تعاليمو په نظام کې په ښکاره او عملي توګه ښودل شوي دي.
اسلامي تمدن د ژوند په مختلفو برخو کې له دې جملې نه په حکومت دارۍ او له خلکو سره د سلوک د طريقې له پلوه، داسې انساني او عادلانه دي چې سارى يې د بشر د تاريخ په اوږدو کې نه ليدل کېږي.
اسلامي حکومتونو په خپلو طلايي پړاوونو کې د اسلامي دولت په د ننه کې له غير مسلمان لږکيو سره هېڅکله د دويمې درجې تبعه په توګه سلوک نه دی کړی، بلکې ټولو خلکو ته په يوه سترګه کتل شوي او له ټولو سره يو ډول سلوک شوی دی. اسلامي دولت مکلف دی چې له هغو خلکو سره چې د کار کولو توان ونه لري او په کار او کسب کولو قادر نه دي اعاشه ورکړي او د هر ظالم په وړاندې ودرېږي او د مظلومانو حق هغوی ته وروګرځوي او د حاکمانو د بې قيد او شرطه تسلط نه په خلاصون سره، د انسان آزادي او کرامت اعلانوي. اسلام د بيان آزادي نه يوازې د انسان حقوق بولي، بلکې هغه د ديندارۍ يو سمبول او ديني واجب بولي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:( دين ټول نصيحت او خير غوښتنه ده).
سره له دې چې د اسلامي تعاليمو او د دموکراسۍ په ارزښتونو کې عارضي ورته والی لکه شورايي نظام او آزادۍ تر سترګو کېږي، خو په ماهيت کې يو له بل نه توپير لري؛ځکه اسلامي دولت رباني نظام دی او دموکراسي د بشر د عقل محصول دی.

**فعالیت**: د اسلام د سیاسي تعالیمو او د موکراسۍ د ارزښتونو تر منځ ورته والی شته؟ او هغه په کومو برخو کې کېدای شي موجود وي په کومو برخو کې د دې دواړو لارې یو له بل څخه جلا کېږي.



### د لوست تکرار

- ...........................................................................................................................
- ...........................................................................................................................



### پوښتنې

۱- دموکراسي زموږ د ملي جرګو سره څه ورته والی لري؟
۲- په افغانستان کې د دموکراسۍ لومړي ګامونه څه ډول کېښودل شول؟
۳- د دموکراسۍ د لومړنیو فعالیتونو دوره څه وخت په افغانستان کې منځته راغله؟
٤- دموکراسي په افغانستان کې ولې له منځه ولاړه؟ او تر کوم وخت پورې وځنډېده؟
٥- د دموکراسۍ ډېر عمده اساسات چې په اساسي قانون کې یې انعکاس موندلی دی ، کوم دي؟



### کورنۍ دنده

د ولسواکۍ د ښېګڼو او زیانونو په اړه څو کرښې ولیکئ.

## د څېرکي لنډیز

**• د دموکراسۍ یا ولسواکۍ کلمه د یوناني ژبې څخه اخیستل شوې ده چې د حکومت کولو او خلکو څخه ترکیب شوې ده او په دې ترتیب سره ولسواکي د لغت له مخې د خلکو حکومت د خلکو په وسیله معنا کېږي.**

**• دموکراسي لویې موخې، بنسټیز اصول او ځینې شرطونه لري چې د هغې مفاهیم یې روښانوي.**

**• ولسواکي د دوولویو موخو د لاس ته راوړلو لپاره کوښښ کوي:**

**۱- د سیاسي ولسواکۍ (د خلکو حکومت) او د ټولنیزې ولسواکۍ (حکومت د خلکو لپاره) رامنځ ته کول.**

**۲- د خلکو لپاره د حقونو او آزادیو چمتو کول.**

**• زموږ د هېواد په تاریخ کې د جرګو د څرګندو نمونو څخه کولای شو چې د میرویس خان د زمانې، د شیر سرخ د مزار له جرګو او د امیر شیر علي خان او امیر عبدالرحمن خان د زمانې د جرګو څخه یادونه وکړو.**

**• اسلام، د الله ﷻ وروستنی دین د ژوندانه د یو بشپړ او هر اړخیز نظام په حیث، د ټولنې د سیاسي نظام په جوړښت کې په دوو لویو اصلونو ولاړ دی.**

**۱- مطلق حاکمیت او د قانون جوړولو حق د الله ﷻ حق دی.**

**۲- خلافت د خلکو حق دی.**

# رسنۍ

**په دې څپرکي کې لاندې لوستونه لولئ:**

- **له عمومي افکارو او رسنیو سره آشنا شئ**
- **د رسنیو ډولونه**
- **رسنۍ او ولسواکي**
- **رسنیز اخلاق**

# د څپرکي موخې

د دې څپرکي په لوستلو سره تاسو لاندې پوهنيزو او مهارتي موخو ته رسېږئ:

- د عمومي رسنيو له مفهوم سره آشنا کېږئ.
- عمومي افکار پېژني.
- د عمومي رسنيو له ډولونو سره آشنا کېږئ.
- د هرې رسنۍ ځانګړتياوې پېژني.
- د عمومي افکارو په جوړونه کې، د عمومي رسنيو په رول باندې پوهېږئ.
- د رسنيو په رول باندې پوهېږئ.
- له رسنيزو اخلاقو سره آشنا کېږئ.
- د بيان د آزادۍ له اصولو او حدودو سره آشنا کېږئ.
- د عمومي رسنيو مفهوم به تشريح کړای شئ.
- د عمومي افکارو اصطلاح به توضيح کړای شئ.
- د عمومي رسنيو ډولونه به فهرست کړای شئ.
- د هرې عمومي رسنۍ ځانګړتياوې به بيان کړای شئ.
- رسنۍ او ولسواکي به بيان کړای شئ.
- رسنيز اخلاق به توضيح کړای شئ.
- د بيان د آزادۍ اصول او حدود به بيان کړای شئ.

# له عمومي افکارو او رسنيو سره آشنا شئ

په تېر لوست کې د اسلام له نظره د موکراسۍ سره بلدشوئ او هغه نيوکې چې د مختلفو خواوو څخه هغه ته متوجه وې هم وڅېړل شوې. اوس د عمومي افکارو مسئله او د دموکراسۍ د درست والي په هکله د رسنيو رول تر بحث لاندې نيسو.

## بحث پرې وکړئ



د ټولنو تاريخ کولای شو چې د رسنيو د تاريخ په څېر وګڼو. انسانانو په لومړي سرکې د ځو زرو کلونو په اوږدو کې د ګړنيزې ژبې څخه د ډېرې موثرې او کاري وسيلې په توګه د افکارو او تړونونو د تبادلې او اړيکو په ټينګولو کې کار اخيستی دی. دلته پوښتنه کېږي چې: لومړنيو انسانانو څه ډول خپل سوال او ځواب يا پيغامونه يو بل ته رسول؟ د وخت په تېرېدو انسانانو د خپلو پيغامونو د لېږدولو لپاره له کومو وسايلو څخه کار اخيسته؟ نن سبا انسانان د خپلو تجربو، احساساتو او عقيدو د انتقالولو لپاره له کومو امکاناتو څخه کار اخلي؟ په داسې حال کې چې له دغو وسايلو او امکاناتو څخه کار وانه خلو، آيا کولای شو خپلې اړتياوې په وخت او موقع سره تر سره کړو؟ په دې صورت کې به ټولنه له کومو ستونزو سره مخامخ شي؟ مخکې له دې چې د رسنيو په هکله معلومات تر لاسه کړو، لازمه ده چې د عمومي افکارو په هکله معلومات تر لاسه کړو.

## عمومي افکار څه شی دي؟

د يوې ځانګړې موضوع په اړه د يوه ګروپ د خلکو د تصميمونو ټولګې ته عمومي افکار وايي. يا په بل عبارت عمومي افکار د هغې موضوع په هکله د ټولنې د خلکو د عقيدو ټولګه ده چې خلک په هغه موضوع کې ګډې ګټې او غوښتنې ولري. په نننۍ نړۍ کې د عمومي افکارو ورځ په ورځ زياتېدونکي ارزښت او په ځانګړې توګه صنعتي ټولنې چارواکي دېته راوېلل چې د دوی د همکارۍ راجلبولو لپاره د پخوا په نسبت زيات د دوی غوښتنو او عقيدو ته پاملرنه وکړي او د دوی د غوښتنو او اړتياوو د تأمينولو په خاطر، د عمومي افکارو ډول ډول وسايل له ځان سره همغږې کړي.

**فعالیت**: ولې صنعتي دولتونه د عمومي افکارو څېړنې ته اړتیا لري؟

## آیا پوهېږئ چې رسنۍ څه شی دي؟

رسنۍ له لاندې وسایلو څخه په ګټه اخیستنې سره د پیغامونو، معلوماتو او اطلاعاتو د انتقالولو ښه وسیله ده. برېښنایي رسنۍ، لکه: راډیو، ټلوېزیون، کېبلي شبکه او انټرنېټ.

**چاپي رسنۍ، لکه**: ورځپاڼې، جریدې، اونیزه او پنځلس ورځنۍ نشریه.

**د رسنیو اهمیت**: د رسنیو رامنځ ته کېدل په ژوره توګه له یوه نسل نه بل نسل ته د فرهنګ د انتقال د بدلون لامل ګرځېدلي دي. سربېره پردې نن ورځ رسنۍ کولای شي چې ډېر تازه او نوي خبرونه، پرمختګونه، او نړیوالې علمي او فني، ټولنیزې، فرهنګي، سیاسي، اقتصادي او ورزشي پېښې خپلو لیدونکو اورېدونکو او لوستونکو ته ولېږدوي. رسنۍ له یوه پلوه د تبلیغاتو د ډېر مهم لامل په توګه او له بله پلوه په عمومي افکارو باندې د اغېز اچوونکي لامل په توګه په نننۍ نړۍ کې له فوق العاده اهمیت څخه برخمنې دي. په ټولیز ډول د رسنیو نقش او اهمیت په زیاترو ټولنو او هېوادونو کې د قانونیت په ښه کېدو، اصلاح او تأمینولو کې نغښتی دی.

## رسنۍ او خلک د ټولنې په اداره کې څه اغېز لري؟

رسنۍ خلك د ټولنیزو، سیاسي، فرهنګي او اقتصادي چارو له بهیر څخه خبروي، د هغو د لاملونو او پایلو سره یې آشنا کوي؛ تاسې هره ورځ په هېواد او نړۍ کې د رسنیو په واسطه د پېښو د تحلیل، تجزیې او څېړنو شاهدان یاست. رسنۍ په مختلفو چارو کې د مختلفو لارو څخه، لکه: خبرې اترې، ټول پوښتنې، ګردی مېز، تودې خبرې او داسې نورو له لارې د دولت له کارونو او پلانونو څخه څارنه کوي؛ خپل اصلاحي او انتقادي نظریات هغوی ته ور انتقالوي؛ دولتي چارواکي او مسؤولین د خلکو او کار پوهانو اصلاحي او انتقادي نظریات اوري او د خپلو کارونو په اصلاح کې له هغو څخه ګټه اخلي. رسنۍ خلك له خپلو حقونو او دندو سره اشنا کوي؛ خلك له خپلو دندو او مکلفیتونو څخه خبرېږي؛ په پایله کې د مسؤولیت احساس کوي او خپل مکلفیتونه او دندې قبلوي او په خپل وخت او زمان سره یې سرته رسوي

.

## آیا پوهېږئ چې رسنۍ کوم رولونه او دندې لري؟

### ۱- تفریحي رول

انسانان په معمولي ډول سره د رسنیو څخه د وزګارتیا په وخت کې ګټه اخلي؛ وزګارتیا هغه وخت دی چې خلک کولای شي په هغې کې رسنۍ وګوري او د هغو له تفریحي، تعلیمي او تربیتي پروګرامونو څخه ګټه واخلي.

### ۲- خبري رول

رسنۍ د خبرونو خپرېدو او اطلاع دنده لري؛ د دوی دنده په چټکه توګه د خبرتیا او زموږ د نړۍ د پېښو او خبرونو خپرول دي؛ له همدې کبله ده چې رسنۍ د ځمکې د کُرې د کوچني کېدو او د هغې پر سر د اوسېدونکو د ګاونډیتوب لامل ګرځېدلي دي؛ د ټولنیزو اړیکو په زمانه کې، هېڅ یوه پېښه یوازې په یوه جغرافیایي سیمه پورې محدوده نه پاتې کېږي؛ بلکې په ټوله نړۍ پورې اړه پیدا کوي؛ د بېلګې په توګه، یو افغان شهید کېږي؛ دا یوازې په افغانستان پورې نه، بلکې ټوله نړۍ د هغه پر شهادت باندې غمجنه کېږي.

### ۳- د یو رنګ کېدنې رول

رسنۍ د یوې ټولنې د ټولو اوسېدونکو د هنرونو، غوښتنو او توقعاتو د نږدې کېدو لامل ګرځي. د محدودیت له زمانې څخه د ټولنو د وتلو زمینه برابروي.

### ۴- دخبرولو رول

که څه هم خبرونه او زده کړې یو له بل سره نږدې دي، خو د رسنیو ځانګړې دنده باید یوازې اطلاع او خبر رسونه نه وي، بلکې د خبرونو درست تحلیل او تشریح هم وکړي. د خبري پدیدو تحلیل، د هغو د بدلون له لاملونو څخه د انسانانو خبرول، یو له هغو لاملونو څخه دي چې د انسان په فکر کې د بدلون سبب ګرځي. له دې امله وېلی شو چې د رسنیو دنده یوازې د خبرونو خپرول نه دي، بلکې د پېښو په تحلیل، تشریح او د خلکو خبرتیا ته هم پاملرنه وکړي.

**فعالیت**

ستاسې په نظر، رسنۍ یوازې خبر خپروي او یا نور موضوعات هم په برکې نیسي؟

## د ټولنيز تړاو احساس

رسنۍ لکه د پله په څېر د ټولنې د خلکو تر منځ عمل کوي او هغوی د يوې بشپړې ( ټولنې) سره د تړاو څخه خبروي. رسنۍ کولای شي چې خپل اورېدونکي د کمال او خلاصون په لوري او يا هم د بدۍ، خوارۍ او ذلت لوري ته کش کړي. رسنۍ کولای شي چې فکرونه روښانه کړي او يا هم په ذهنونو کې زهروپاشي. رسنۍ د ملي يووالي د روحيې په پياوړتيا، اتفاق او خوا خوږۍ او يا هم د خلکو تر منځ د نفاق، بدمرغۍ او يا د اتفاق پر ځای د نفاق اچولو کې ستر او غوره رول ولوبوي. رسنۍ هم لامل او هم د انسانانو تر منځ د ټولنيز تړاو ښکاره کوونکې دي. په لنډه توگه بايد ووايو چې د رسنيو فعاليت په نړۍ کې زيات او پيچلي اړخونه پيدا کړي دي او د هغو د مثبتو او منفي اثراتو توپير ډېر گران شوی دی.



### د لوست تکرار

- ..............................................................................................................................
- ..............................................................................................................................
- ..............................................................................................................................
- ..............................................................................................................................
- ..............................................................................................................................



### پوښتنې

١- عمومي افکار څه شی دي؟

٢- عمومي افکار څه اهميت لري؟

٣- رسنۍ تعريف کړئ.

٤- د رسنيو څلور دندې په لنډه توگه بيان کړئ.

٥- رسنۍ په ټولنه باندې څه اغېز لري؟



### کورنۍ دنده

د رسنيو په اړه خپل نظر په پنځو کرښو کې وليکئ.

# د رسنيو ډولونه

په تېر لوست کې مو زده کړل چې رسنۍ له لاندې وسايلو نه په ګټه اخيستنې سره د پيغام، معلوماتو او اطلاعاتو د لېږدولو وسيله ده.



**برښنايي رسنۍ**: راډيو، تلويزيون، کېبلي شبکه او انټرنېټ.

**چاپي رسنۍ**: ورځپاڼې او جريدې.

په دې لوست کې د رسنيو له ډولونو سره آشنا کېږئ.



## بحث پرې وکړئ

### مطبوعات څه شی دي او په ټولنه باندې څه اغېز لري؟

د مطبوعاتو اصطلاح دوه معناوې لري: خاص او عام. مطبوعات په ځانګړې او اصطلاحي معنا کې دوره يي خپرونو، لکه: ورځپاڼو او مجلو ته ويل کېږي، خو په عامه معنا له دوره يي مطبوعاتو سربېره، کتاب، اعلان، فلم او ننداري (سينما او تياتر) هم په مطبوعاتو کې راځي. مطبوعات د يوه ملت د تمدن، ودې او بيدارۍ بيانوونکي دي. د هر هېواد د مطبوعاتو د ودې او پراختيا اندازه د هغه هېواد د پرمختګ او پوهې بيانوونکې ده. د هر ملت په اړه د هغه د مطبوعاتو پربنسټ قضاوت کولای شو.

مطبوعات په دولت او عمومي چارو باندې د څارنې يوه موثره وسيله ده، د ملت سترګې او غوږونه شمېرل کېږي؛ له هېچا نه پټه نه ده چې مطبوعات نن سبا د يوه هېواد په سياسي او ټولنيز ژوند کې مهم رول لوبوي؛ د هغه اهميت له پلوه چې مطبوعات يې د فکرونو، عقيدو او د هغوی په لاربښوونه کې لري، د هېڅ يو دولت چارواکي نه شي کولای چې له دې مهم کار څخه سترګې پټې کړي.

**فعاليت**: د مطبوعاتو د اهميت په هکله د خپلې ډلې له غړو سره مشوره وکړئ او بيا خپل معلومات بيان کړئ.

## ورځپاڼه څه شی ده؟

ورځپاڼه  هغې خپرونې ته ویل کېږي چې هره ورځ خپرېږي، په پرله پسې توګه د ټولنیز ژوندانه په ټولو برخو کې د ورځنیو مهمو پېښو په اړوند، نوي او تازه عمومي کورني او بهرني معلومات خپلو لوستونکو ته وړاندې کوي. ورځپاڼه تر ټولو پخوانۍ ژورنالستیکه وسیله ده او نن سبا په انساني ټولنو کې د خپرېدو د ډېرې مهمې وسیلې په حیث کارول کېږي. د خپل ټولنیز ګټورتوب او هر اړخیز پرله پسې فعالیت له پلوه بې مثله ده. ورځپاڼو به د روانو چارو، مشغولتیاوو او خپرونو په هکله ټول اطلاعات په یوه ځای کې خپرول. د شلمې پېړۍ په لومړنیو کلونو کې، ښاري یا سیمه ییزې رسنۍ را پیدا شوې. په شلمه پېړۍ کې د دغو پخوانیو ورځپاڼو دوې بېلګې نیویارك ټایمز او لندن ټایمز ورځپاڼې وې چې په ډېرو هېوادونو کې معتبرو او با نفوذه ورځپاڼو دغه دوې ورځپاڼې د خپل ځان لپاره نمونې وګرځولې او له هغو څخه یې کار اخیستو.

**فعالیت**: د خپل هېواد لس ورځپاڼې فهرست کړئ او بیا دې له تاسو څخه یو کس هغه نورو ته واوروي.

## راډیو څه شی ده؟ له هغې څخه د کومو مقصدونو لپاره کار اخېستل کېږي؟

راډیو د اورېدنو له تخنیکي وسایلو څخه ده چې په کورونو او کورنیو کې ترې خلك ګټه اخلي او هم د ټولو خلکو په خدمت کې ده؛ راډیو یوه ارتباطي وسیله ده چې کولای شو هغه یوطرفه رسنۍ وبولو. راډیو د یوې خبروونکې او خبري رسنۍ په نامه په زیاتو برخو کې د زمان او مکان په ولکه کولو باندې بری تر لاسه کړی دی. رسنۍ د سینما او نورو لیکنیزو ارتباطي وسایلو په پرتله نه یوازې دا چې د عملي میدان پراخه برخه په اختیار کې لري، کولای شي چې د فکرونو او ذهنونو په غورېدو باندې اغېزه واچوي، بلکې له دې څخه زیات هم کولای شي چې په ډېرې چټکۍ سره دغه کارونه ترسره کړي. د راډیو له لارې د نړۍ په ټولو هېوادونو کې د تعلیمي او تربیتي پروګرامونو خپرول دود لري. د پوهنې وزارت په تشکیل کې د تعلیمي او تربیتي راډیو ټلوېزیون په نامه یو ریاست شته چې د تعلیمي او تربیتي پروګرامونو خپرولو او نشرولو دندې په غاړه لري. د ښوونکو او زده کوونکو د پوهې د کچې عملي او مسلکي پوهې په لوړېدو کې ارزښتناکه ونډه لري.

**فعالیت**: د خپلې ډلې له غړو سره خبرې وکړئ او وروسته د خپل هېواد د لسو راډیوګانو نومونه ولیکئ.

## تلوېزيون څه شی دی؟

تلوېزيون یوه لیدونکې او اورېدونکې رسنۍ ده چې په وروستیوڅلوېښتو کلونو کې د ډله ییزو رسنیو پر وسایلو باندې د هغه ورځ په ورځ زیاتېدونکی اغېز، یو مهم تحول شمېرل کېږي؛ نن سبا تلوېزيون د کورنیو د ژوندانه، نه جلا کېدونکې برخه جوړوي؛ تلوېزيون د هغه تجربې، فرهنګي ټولنیزو ذهنیتونو د چوکاټ په برابرولو کې چې د نننۍ ټولنې د خلکو په منځ کې اطلاعات تفسيروي او سازمان ورکوي، مرسته کوي. تلويزيون په اوسنۍ زمانه کې د غير مستقيمو اړيکو په پراختیا کې د کتاب، ورځپاڼې او مجلې په څېر مهم دی. تلويزيون هغه لارې او طريقې چې د خلکو ټولنيز ژوند يې تفسير کړی دی او د هغه په وړاندې غبرګون ښيي، د نظم ورکولو په مرستې سره په ټولنيز ژوند کې زموږ تجربې په قالب کې اچوي.

## انټرنېټ څه شی دی؟

تاسې ټولو به د ورځې په اوږدو کې څو ځلې د انټرنېټ کلمه د ډله ییزو رسنیو، لکه: ورځپاڼې، راډیو او تلوېزيون څخه اورېدلې وي. خو کېدای شي چې تر ننه پورې په اوسنۍ نړۍ کې د هغه له ماهيت او کړو وړو څخه تاسې ټول دقيق معلومات ولرئ. انټرنېټ یوه پراخه نړیواله شبکه ده چې ۲۵ کاله سابقه لري او په وروستيو پنځو کلونو کې يې زياته پراختيا موندلې ده. انټرنېټ په نړۍ کې د خپرو شوو زرګونو لويو او وړو شبکو مجموعه ده چې شرکتونه، سازمانونه، علمي او سوداګريز مرکزونه او د کار مسؤولين يو له بله سره نښلوي. انټرنېټ هم د نورو پديدو په څېر، بې شمېره ګټې لري. انټرنېټ د خلکو د اړيکو نيولو لپاره تر ټولو ارزانه وسيله او همدارنګه په نړۍ کې د وروستيو اطلاعاتو د ترلاسه کولو تر ټولو آسانه طريقه ده. د انټرنېټ له لارې هر ډول اطلاعات له متن څخه نيولې تر تصوير، آواز او فلم پورې د انتقال وړ دي. د نړۍ پوهنتونونه، څېړنيز لوی او کوچني مرکزونه له دې شبکې سره تړلي دي، خپلې علمي پانګې او زېرمې د نورو څېړونکو په واک کې ورکوي. استادان او پوهان خپلې وروستنۍ لاسته راوړنې د ټولو په خدمت کې ږدي او نه پېژندونکي خلک له هغو څخه ګټه پورته کوي. له نوو امکاناتو څخه په ګټه اخيستنې سره پوهان او د نظر خاوندان کولای شي چې بې له مسافرته، په انټرنېټ کې له لېرې څخه غونډې جوړې کړي؛ يو له بله سره مشورې

وکړي؛ اوس زیاتره سوداګریزې چارې، پلورل او پېرودل د انټرنېټي امکاناتو په واسطه صورت نیسي؛ په افغانستان کې انټرنېټي امکانات په ۱۳۸۱ کال کې رامنځ ته شول چې د هېواد په ۳٤ ولایتونو او یو شمېر ولسوالیو کې اوس مهال انټرنېټي امکانات وجود لري.

## کېبلي شبکه څه شی ده؟

کېبلي شبکه د غږیزو او لیدیزو (سمعي او بصري) رسنیو له ډلې څخه ده چې ډول، ډول تربیتي، فرهنګي، تفریحي، ملي او نړیوال پروګرامونه خپلو ګډون کوونکو ته وړاندې کوي.

### د لوست تکرار

- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................
- ..........................................................................................

### پوښتنې

۱- مطبوعات په ټولنه باندې څه اغېزه لري؟

۲- د ورځپاڼو محتویات کوم مطالب تشکیلوي؟

۳- راډیو او تلویزیون د خلکو پر افکارو باندې څه اغېزه لري؟

٤- د انټرنیټ ګټې بیان کړئ.

۵- کېبلي شبکه کوم پروګرامونه لري؟

### کورنۍ دنده

راډیو له تلویزیون سره پرتله کړئ.

# رسنۍ او ولسواکي

په تېرلوست کې مو د رسنیو د ډولونو په اړه معلومات حاصل کړل. په دې لوست کې د رسنیو او ولسواکۍ ترمنځ اړیکې زده کوئ.



## خبرې پرې وکړې

رسنۍ د مدني ټولنې د بنسټونو یو جز دی چې ځینې ټولنپوهان یې د دولت څلورم رکن بولي. له رسنیو څخه په مختلفو سیاسي نظامونو کې، متفاوتې ګټې تر لاسه کېږي، د بېلګې په توګه: په ولسواکو نظامونو کې د ټولنې خلک هم کولای شي چې له هغه څخه د ځان په ګټه کار واخلي په داسې حال کې چې په استبدادي یا زورواکي سیاسي نظامونو کې رسنۍ د دولت تر جدي کنټرول لاندې وي او زیاتره د هغه په ګټه کار کوي. دلته پوښتنه پیدا کېږي چې: د رسنیو آزادي په ولسواکو رژیمونو کې څه اهمیت لري د رسنیو د آزادۍ لپاره د عقیدې، افکارو او بیان آزادي ضروري ده چې د ولسواکۍ ډېر مهم رکن ګڼل کېږي. په ولسي نظامونو کې د رسنیو آزادي د هغه نظام د تمدن، ودې او بیدارۍ ښکارندوی ده. د رسنیو آزادي په عمومي چارو او دولت باندې د نظارت یوه موثره وسیله او د ملت سترګې او غوږونه بلل کېږي.

رسنۍ کولای شو چې د ولسواکۍ ستنې او بنسټ وشمېرو او زیات درناوی یې وکړو، ځکه چې اطلاعاتوته د لاس رسي او صحیح خبرونو پرته د چارو او د عمومي او سیاسي تصمیم نیولو په اړه قضاوت کول ناممکن دی.

## د رسنیو اهمیت

رسنۍ د ولسي حکومت لپاره بې مثله څواک دی، ځکه حکومت ته د دې ورتیا ورکوي چې له خلکو سره خپلې اړیکې وساتي او د چارو د ښه کېدو په خاطر، نیوکې او وړاندیزونه وړاندې کړي.

رسنۍ نه یوازې عمومي شکایتونه تحلیل او تجزیه کوي، بلکې کوښښ کوي چې د خلکو احساسات او نظریې لکه څرنګه چې دي، همهغسې منعکسې کړي.

تجربو ثابته کړې ده کله چې په یوه هېواد کې نیوکې نه وي، په ټولنه کې د ظلم، بې عدالتۍ او تېري

ګواښ ډېر وي. دولتي ماموران د اعتراض او پوښتنې له ویرې پرته له خپل قدرت څخه ناوړه ګټه پورته کوي. کله چې رسنۍ موجودې وي، نیو کې هم موجودې وي. د دولت مامورین او یا هر بل څوک چې وي، ډارېږي او د خلکو حال ته پاملرنه کوي؛ دغه کار په ولسواکو نظامونو کې تر سره کېږي. په کومو هېوادونو کې چې ولسواکي موجوده وي، هر څوک کولای شي چې د رسنیو له آزادۍ څخه ګټه واخلي؛ د ټولنې، دولت، سیاست او نورو کارونو په اړه خپل نظریات او عقاید د کتاب، مقالې او یا شفاهي بیان په بڼه د ورځپاڼو، مجلو، راډیو او ډله ییزو رسنیو له لارې خپاره کړي. دولت حق نه لري چې د چا په خپاره شوو او یا د خپرېدو وړ مکتوبونو باندې سانسور ولګوي؛ خو که چېرې د اساسي قانون او د رسنیو د قانون مخالف، دیني مقدساتو او عقیدو ته سپکاوي پکې وي.

**فعالیت**: له خپلو ملګرو سره په ولسواکي نظام کې د رسنیو د اهمیت په اړه مشوره وکړئ او لنډیز یې نورو ته واوروئ.

## رسنۍ او ټاکنې

د ولسواکو نظامونو په ټاکنو کې د رسنیو رول څرګند دی، د رسنیو له دندو څخه یوه یې په ټاکنو کې د خلکو د برخه اخیستلو په هکله خبرېدل دي؛ رسنۍ کولای شي د ټولنې غلي او چوپ خلك په ټاکنو کې د ګډون او نوماند کېدو لپاره وهڅوي؛ ټاکنې په سیاسي بهیر کې د خلکو د برخې اخیستنې لپاره یو ښه تاییدوونکی او تصدیق کوونکی مثال دی.

سیاسي مشارکت د ټاکنو په ډګر کې د خلکو او ډلو د آزادۍ لاس رسۍ پر بنسټ د آزادې برخې اخیستنې د نتیجې محصول دی.

رسنۍ د نوماندانو، ګوندونو، د دوی د پالیسیو، د ټاکنو د څرنګوالي په اړه پوره معلومات راغونډوي او رایه ورکوونکو ته د آګاهانه رایه اچونې زمینه برابروي.



رسنۍ د رایه اچوونکو لپاره بشپړ او دقیق معلومات برابروي؛ همدارنګه نوماندان او مستحق ګوندونه له رسنیو څخه خلکو ته د خپلو پیغامونو په رسولو کې ګټه اخلي.

رسنۍ په ټاکنو کې په پراخې اندازې سره د ګډون کولو لپاره خلك هڅوي؛ ترڅو د رای اچولو صندوقونو ته ورشي؛ د سمو او بې طرفه تحلیلونو په وړاندې کولو سره

د ښو او وړ استازو په ټاکلو کې مرسته کوي.

رسنۍ د ټاکنو ټول بهیر او د سیاست پوهانو پیغامونه خپروي؛ د رسنیو دغه دقیقه څېړنه او څېړنه کېدای شي چې د ځینو ملاحظاتو او د ټاکنو په مدیریت کې د احتمالي اداري فشار څخه ښه مخنیوی وکړي.

په استبدادي نظامونو کې آزادې رسنۍ اصلاً وجود نه لري؛ که چېرې کومه رسنۍ شتون هم ولري، د دولت د سیاست تابع به وي او هر هغه څه چې دولت ورته دیکته کوي، رسنۍ یې خپروي؛ په دې برخه کې کومه آزادي نه لري. لنډه دا چې رسنۍ د ولسواکۍ په تعمیم او خپرولو، ولسي آزادیو، د جمهوري ریاست او پارلمان په ټاکنو، د دولتونو د پرمختیایي پروګرامونو، د سیاسي پیغامونو په خپرولو کې کلیدي رول لوبوي.

**فعالیت**: په ټاکنو او د نوماندانو په پېژندنه کې د رسنیو په رول باندې خبرې وکړئ او د خپلو خبرو پایله نورو ته واوروئ.

### د لوست تکرار

- ..............................
- ..............................
- ..............................

### پوښتنې

۱- ولې رسنیو ته د ملت سترګې او غوږونه وایي؟

۲- په هغو هېوادونو کې چې د رسنیو آزادي موجوده نه وي، د خلکو حالت یې څه ډول وي؟

۳- د رسنیو آزادي په استبدادي او ولسواکو رژیمونو کې یو له بله څخه څه توپیرلري؟

٤- رسنۍ په کومو موضوعګانو کې کلیدي رول لري، بیان یې کړئ.

۵- په ولسواکو رژیمونو کې د رسنیو کړه وړه بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

په ولسواک نظام کې د رسنیو د رول په هکله څو کرښې ولیکئ.

# د بیان آزادي او رسنيز اخلاق

په تېر لوست کې مو د رسنیو او ولسواکۍ په اړه معلومات تر لاسه کړل، زده مو کړل چې رسنۍ د یوه ملت د تمدن، ودې او بیدارۍ نښه ده؛ د هر ملت د رسنیو د ودې او پراختیا اندازه د هغه د پوهې او ودې څرګندوونکې ده؛ همدارنګه مو زده کړل چې د رسنیو آزادي د ولسواکۍ نظام د موجودیت په صورت کې امکان لري؛ په دې درس کې د بیان آزادي او رسنیز اخلاقو په اړه آشنایي پیدا کوئ.

## خبرې پرې وکړئ

د بیان آزادي او د رسنیز اخلاقو ساتل د بشري ټولنو په پرمختګ او بیدارۍ کې ستر رول لري. ستاسې له نظره:

- د بیان آزادي د څه ډول شرایطو لاندې په یوه ټولنه کې عملي کېدای شي؟

د بیان آزادي د آزادۍ د ډولونو څخه یو بل ډول دی چې د زیات اهمیت څخه برخمنه ده؛ د بیان آزادي نن سبا د ټولنیز ژوند له اړتیاوو څخه شمېرل کېږي او د دولت د مداخلې له وېرې پرته د خلکو د عقیدو د بیان، د ویناوو د اورولو له آزادۍ څخه عبارت ده. د بیان آزادي یوه له حقوقي او فکري آزادیو څخه ده. په دې معنا چې کوم خلك چې په یوه ټولنه کې ژوند کوي، باید څرنګه چې فکر کوي او کومه عقیده لري، هغه بیان کړای شي؛ یا یې د کتاب او مطبوعاتو له لارې نوروته انتقال کړي؛ هغه له خپلو افکارو او اطلاعاتو څخه باخبر کړي؛ ځینې پوهان د بیان آزادي د ټولو مدني آزادیو د لوړتیا ټکی بولي؛ د بیان له آزادۍ څخه هدف دا دی چې هر هېوادوال د نظر د څرګندولو حق لري او هم د دې حق لري چې د نورو په څېر خپل نظر د خلکو غوږونو ته ورسوي. د دې منظور د تر سره کولو لپاره خلك د ټولو رسنیو له لارې د هر ډول اطلاعاتو او فکرونو د لټون او لاس رسي حق لري؛ د بیان آزادي د ټولنې لپاره ډېرې ګټې لري؛ د آزادۍ سلبول د ټولنې د پرمختګ د دربېدو او د فکري ودې د مخنیوي لامل ګرځي.

**فعالیت**: د بیان له آزادۍ څخه منظور څه دی؟ د خپلې ډلې له غړو سره خبرې وکړئ او د خپلې مباحثې پایله نورو ته واوروئ.

## د بیان آزادي تر کوم بریده پورې جواز لري؟

د بیان آزادي په دې مفهوم نه ده چې هر څوك چې هر څه یې زړه وغواړي، په ټولنه کې یې مطرح کړي بې له دې چې د ټولنې لپاره د هغې ګټورتوب او زیان په پام کې ونیسي؛ یعنې دا چې نباید دا طرح د ټولنې د حال لپاره دګمراهۍ، اخلاقي فساد، فتنې اوګډوډۍ لامل شي؛ بلکې د بیان آزادي تر هغه بریده پورې جواز لري چې عملي کول یې د نورو د زیان سبب نه شي؛ د نورو انساني کرامت او د کلام پاکوالی رعایت کړي.

د بیان د آزادۍ غوره حدود په ترتیب سره عبارت دي له:

- د بیان آزادي باید د ملي ګټو او دیني مقدساتو په وړاندې خنډنه شي.
- د بیان آزادي باید بې له کوم دلیله د حقیقي خلکو یا حقوقي بنسټونو په وړاندې د سپکاوي او کینې کولو بهانه ونه ګرځي.

• د بیان آزادي باید د ټولنې د منل شویو ارزښتونو او قانون د بې اهمیته کېدو لامل ونه ګرځي.

## د مطبوعاتو آزادي او رسنیز اخلاق

د دې اصل په موجب خلک د خپلو افکارو د نشرېدلو حق، د لیکنو یا مطبوعاتو له لارې تر لاسه کوي؛ بې له دې چې د هغو د خپرېدلو اجازې اخیستلو ته اړ ایستل شي او یا تر سانسور لاندې ونیول شي؛ د مطبوعاتو آزادي د چاپخانې د تأسیس، د اعلان نشرول او د خپرونو خرڅلاو څخه عبارت ده چې د پلورونکو له خوا د ګڼه ګونې څخه په ډکو ځایونو کې یې خرڅوي؛ د پېښو د ذکرکولو، نیوکو، په هېواد کې د موجودو مسایلو، د بهیر په وړاندې د واقعبینانه، رښې څېړنې او تحلیلونه وړاندې کول، د دولت په کړنو باندې نیوکه او له هغو څخه د خلکو خبرتیا او هغوی ته د عمومي افکارو ابلاغول هغه وخت امکان لري چې دقیق معلومات په لاس کې ولرو.

## آیا پوهېږئ چې د رسنیزو اخلاقو مفهوم څه شی دی؟

د رسنیزو اخلاقو مفهوم په مختلفو ځایونو، وختونو او هېوادونو کې توپیر لري. رسنیز اخلاق لیکل شوې لیکنې نه دي او زیاتره په یوه ځانګړې زماني او جغرافیایي محدوده کې ټولنیزو قوانینو او ارزښتونو ته رجوع کوي. په رسنیزو اخلاقو کې د بایدونو، نه بایدونو، توصیو او نهي څخه خبرې کېږي؛ د مسؤولیت مننه په رسنیزو اخلاقو کې یوه له سترو حقیقتونو څخه ده؛ څېړنو څرګنده کړې ده چې رسنۍ د افکارو، نظریو، ذهنیتونو او برداشتونو په تشکل یا جوړونه کې زیاته اغېزه لري؛ دغه اغیزې کېداې شي چې مثبتې، جوړوونکې او تعلیم ورکوونکې او یا هم کېدای شي چې تخریبي او ورانوونکې لوري ولري؛ نو لازمه ده چې د رسنیزو اخلاقو د تاثیر کولو ډول او طریقه د انسانیت او ټولنې په ګټه وي.

## رسنیز اخلاق له کومو موضوعګانو څخه تشکیل شوي دي؟

رسنیز اخلاق د حرفه یي اخلاقو له جملې څخه یو ستر بحث دی چې د بیان آزادي، د مطبوعاتو آزادي، د مطبوعاتو قانون، نړیوالو مسایلو او تړونونو، د چاپ حق، ادبي سرقت، د ورځپاڼه لیکونکي مسؤولیت او د لیکونکي پوهه او داسې نورو موضوعګانو څخه تشکیل شوي دي چې ځانګړې د استفادې وړ متنونه، کتابونه او مدارک لري او همدارنګه یو شمېر نورې زیاتې موضوعګانې شته چې لیکلې او مشخصې نه دي، خو هره ورځپاڼه لیکونکي هغه په خپله ټولنه کې پېژني. رسنیز اخلاق په مختلفو ټولنو کې ځانته ځانګړنې لري؛ د رسانه یي فعالیتونو اصول او آزادۍ د ډله ییزو رسنیو د قانون له خوا مشخصېږي؛ همدارنګه په هغه ټولنه باندې د مسلطو اخلاقو چوکاټ تکمیلوي.

هغه محوري مسایل چې په رسنیزو اخلاقو کې باید په پام کې ونیول شي دا دي: صداقت، روغتیا، توازن، امانت او له هر هغه څه څخه پرهیز کول چې د ټولنیزو ګټو سره په ضدیت کې واقع شي. څرنګه چې د یوه خبرنګار لومړنۍ دنده د خبر رسول دي؛ نو له دې امله خبرنګار باید کوښښ وکړي

چې د ټولنې د اړتیا وړ اطلاعات برابر کړي؛ هغه د ځانګړو دلیلونو په راوړلو او خپلو شخصي غوښتنو کې پټ او تحریف نه کړي؛ خبر لیکونکي باید د اړوندې موضوع په اړه بشپړ معلومات ولري؛ که چېرې د کومې موضوع په هکله بشپړ معلومات ونه لري؛ د نیمګړو معلوماتو له خپرېدو څخه دې ډډه وکړي؛ ځکه چې د نیمګړي او دروغجن خبر خپرېدل، د خبر اخیستونکو د نیمګړو او ناقصو معلوماتو د اخیستلو لامل ګرځي؛ رسنۍ د خلکو او ټولنې په وړاندې له اخلاقي نظره مسؤولیت لري چې د هغه څه له خپرېدو څخه چې د یوه هېواد په قوانینو او قواعدو کې د اخلاقو مخالف بلل کېږي، ډډه وکړي؛ رسنۍ امکان لري چې په دوو حالتونو کې د مطبوعاتو له آزادۍ څخه په ګټه اخیستنې سره د مطبوعاتو د قوانینو له پولې څخه تېرى ( تخطي) وکړي.

۱- د چا په هکله د تهمت، توهین او یا د شخصي مسایلو د لیکلو په صورت کې د دا ډول تېري په هکله د خلکو په شکایتونو باندې غورکېږي او مجرمان یې د قانوني ګروېږنې لاندې نیول کېږي.

۲- د مطبوعاتو د قانون خلاف لیکنو او د مطبوعاتو له آزادۍ څخه د غیر قانوني ګټه اخیستنې په صورت کې لکه: د مقدساتو توهینول، د ملي امنیت په خطر کې اچول، د عمومي فکرونو او اذهانو په تشویش کې اچول.

په زیاتره هېوادونو کې د رسنیو قانون ماتونو او تورونو د پلټنې په خاطر، ځانګړې رسنیزې محکمې د مطبوعاتي منصفه هیات د موجودیت په صورت کې په څرګنده دایرېږي. امکان لري چې نقد کله کله فردي یا جمعي نیوکې ولري؛ له دې امله نقد باید چې رسنیز اخلاق له منځه یو نه سي؛ له فردي او جمعي حقونو څخه د تېري او رسنیو له انحراف څخه مخنیوی وکړي.

**فعالیت**:ستاسې په نظر رسنۍ ولې د رسنیو له قانون څخه سرغړونه کوي؟ خپلو ملګرو سره له مشورې وروسته، د خپل ګروپ دلایل بیان کړئ.

## په افغانستان کې د رسنیزو اخلاقو په هکله څه پوهېږئ؟

نن سبا رسنۍ په هېواد کې له ښې ودې څخه برخمنې دي؛ د افغانستان د رسنیو قانون تر ډېرې کچې پورې د ډله ییزو رسنیو لپاره آزادۍ منلي دي؛ هغه ستونزه چې د هېواد په رسنیو کې موجوده ده دا ده چې زیات خبرنګاران غیر مسلکي او له رسنیزو اخلاقو څخه بې خبره، د عمل ډګر ته ورګډ شوي دي؛ ژبني، قومي او نورو تمثیلونو ته یې ډېر انعکاس ورکړی دی چې په هېواد کې د زیاتو ستونزو د رامنځته کېدو لامل شوي دي؛ په اوسنیو شرایطو کې زموږ هېواد تر هرڅه زیات سولې او امنیت ته اړتیا لري، نو له دې امله خبرنګاران او لیکوالان باید د سولې خبرونو ته تر نورو څه لومړیتوب ورکړي؛ رسنۍ د ملي اعتماد، سولې او ثبات په پیاوړتیا کې باید مرسته وکړي؛ ټولنیزو او امنیتي ضد موخو ته د رسېدو وسیلې نه شي؛ د هغو مطالبو له خپرېدو څخه چې د ټولنیزو ګټو نفي کوونکي وي لکه: هغه مطالب او آثار چې د اسلام د سپیڅلي دین د احکامو او اصولو خلاف وي، ډډه وکړي. هغه آثار او مطالب چې د نورو

اديانو او مذهبونو د غندنې سبب ګرځي، هغه آثار او مطالب چې د اساسي قانون مخالف وي او زموږ د هېواد د جزا په قانون کې جرم ګڼل کېږي، دېده وکړي. څرنګه چې زموږ هېواد يو اسلامي هېواد دی د اسلام د سپیڅلي دین له تبلیغ او ترویج پرته د نورو دینونو تبلیغ او ترویج جواز نه لري.

**فعالیت**: ستاسې په نظر: رسنیز اخلاق نظر هیوادونو ته څه توپیر کوي؟ په دې هلکه خپل نظر څرګند کړئ.

### د لوست تکرار

• ..................................................................

• ..................................................................

### پوښتنې

۱- د بیان آزادي څه شی ده؟

۲- د بیان د آزادۍ دوه موارد وواياست.

۳- په ولسواکۍ کې د مطبوعاتو څانګړتیاوې بیان کړئ.

٤- کومې موضوعګانې په رسنیزو اخلاقو کې شاملې دي؟ ويې واياست.

٥- رسنۍ کومې موضوعګانې باید خپرې نه کړي؟ په دې هکله معلومات ورکړئ.

### کورنۍ دنده

کومه موضوع د رسنیو په قانون کې جرم بلل کېږي، په دې هکله خپل معلومات بیان کړئ.

## د څپرکي لنډیز

• **عمومي افکار د یوې خاصې موضوع په اړه د یوې عامې ډلې د خلکو د تصمیمونو ټولګې (مجموعې) ته ویل کېږي.**

• **رسنۍ له برېښنايي او چاپي وسايلو څخه په ګټه اخيستنې سره د پيغامونو، معلوماتو او اطلاعاتو له لېږدولو څخه عبارت دي.**

• **د رسنیو ډولونه له: مطبوعاتو، ورځپاڼو، راډيو، ټلوېزيون، انټرنېټ او کېبلي شبکې څخه عبارت دي.**

• **رسنۍ د مدني ټولنې د بنسټ په نامه چې په حقيقت کې د دولت د څلورم رکن په نامه سره يادېږي، د ټولنې د فرهنګي او سياسي اړخونو د پراختيا د شرايطو په برابرولو کې مهم رول لوبوي.**

• **د بیان آزادي د دولت د مداخلې ډار او وېرې پرته د خلکو د عقيدو، بيانيو او وينا وو د کولو د آزادۍ څخه عبارت ده. د بيان آزادي د آزادۍ له ډولونو څخه يو بل ډول دی چې په نننۍ نړۍ کې ډېر اهميت لري.**

• **رسنيز اخلاق د مسلکي اخلاقو يوستر بحث دی چې دغه موضوعګانې لکه: د بيان آزادي، د مطبوعاتو آزادي، د مطبوعاتو قانون، نړيوالې مسئلې او تړونونه، د چاپ حق، ادبي غلا او داسې نور په کې شامل دي.**